# دثوردانقلاب حقیقت

د افغانستان دخلك ديموكراتيك گوند د مركزي كميتې ارگان

پنجشنبه ۱۳٦٤ کال
د جدی ۱۲
January 2. 1986
شپږم کال ۱۰٤ گڼه
پرله پسې گڼه۱۳۱۸
دتاسیس کال ۱۳۵۹


## له اردو سره مینه ولرو

دا.خ.د. گ. دمر کز ي کمیتي عمو مي منشي او دا.د.ج دانقلابي شورا رئيس ملگر ي ببرك كارمل د ثور انقلا بد ملي او دمو كرا تيك خصلت او په او سنيو شرايطو كي دهغه د ځنډ نه منو نكو دندوپه باب په خپله تاريخي وينا كي دوسله وال پو ځ او پەدې جمله كي داردو دمنسو بينو سپيڅلي او له مسوو ليت څخه ډكه و ظيفه داسي و ښود ه: «زړه ورو سر تيرو ، افسرا نو او جنرا لانو !

تاسي دستر ملي كار يعني دامپر يا ليزم او دهغه دلاسپوالانو دتير ي په وړاندې دافغا نستان له انقلابي خلكو څخه ددفاع مسووليت پـــه غاړه لري ... »

واقعيت داد ي چي دا.د. ج نوی ډيپ اردو چي دانقلا ب زيږ نده دی ، ډيره ستــره دنده يعني دافغا نســتا ن له خلكو څخه دفاع په غاړه لري .ددی سپيڅلي دنـــدی اجرا كـول لـــه يوی خواد نـړ يوال امپريا ليزم دنا اعلا م شوی جگړی دپرا ختيا لـــه امله ستو نزی لري خو له بلي خوا دهيواد دهر ربښتيني بچي له پاره ډير ستر وياړ دی ، ځكه دانقلابي خلكو د آرما نو نو په لاره كي مبارز ه يـــو سپيڅلي او عاد لانه كار دی.

نوځكه بايد له اردو سره مينه و لرو چي په دی روا او سپيڅلي جگړه كي تلپاتي كارنامی او حماسي را منځته كــوی. هغه حماسي چي زمو نږ د تاريخ زريني پا ني جو ړو ی.

دا.د. ج . داتل اردو اتـــل منسو بين ، دخلكو له منځه راولاړ شو ی او ددوا مبارزی په سره بتي كي دخا لصو پوـلادو په شان كلك شو ي دی،او له همد ی امله هم ،دراپاـڅيدلو خلكو درښتينو گټــو مدافع او «دانقلاب تيره توره» دی .نوځكه بايد له داسي اردوسره مينه ولرو ، داپـــه دی خاطرچي دهغه په ليكو كي دهيواد ډير ښه او ډير ربښتيني بچيان په گډه سره دانقلا بدآر ما نونو او دزيار كښـــو انسان دهو سا ينې په خاطردانسا ن او انسا نيت د دـښمنا نو او وژو نكو په خلاف جنگيږی .

له اردو سره بايد مينه ولرودا په دی خاطر چي د هغـــه منسوبين شپه او ور ځ اوپه هر ډول حالاتو او شرايطـو كي دخپلی سر ښند و نكـی مبارز ی له امله دا نقلاب ضد له پټــو غور ځنو ی خو دغـه ناو لي ونښي كو لای زمو ږد خلكو د آرام او سو له ييز ژوند فضا گډ و ډه كړ ی او بالاخره له اردو سره بايدمينه ولرو، دا په دی خاطر چي د پو-لادو په شا ن ديو ی نه ما تيدونكي كلا په څير دامپريا ـليزم او دهغه دگو ډا گيواودنړ يوا لي ار تجا ع او هژـمونيزم دتالي ځتو چوړاندی دغا دلانه مبارز ی په لومړ ی كر ښه كي ولاړ دی .

څه ډول كولای شو دغـه ستره او انسا ني دو ستي او دغه ارگا نيكه دو ستي په عمل او په هراړخيزه توگه وښيو ؟

ملــگر ی ببرك كار مـل وايـــلي دی : « زمـــوږ اردو او زموږ دارد و سرتيری دټولو خلكو ، دولت او دټولو رهبرا نو او فعالينو په تيره بيا دگو ند يانو تودی ځيږی او هميشني ساتني ته اړ تيالری او با يد له خپل وياړ لي اردو سره مينه و لری ... »

كله چي داردو جزو تامونه او قطعات داشرارو له و جود څخه دسيمو دپا كو لو عمليـــاتو تــه ځي نو د دغـــو سپيڅلو دندو له اجرا څخـه درا ستنيدو په وخت كي بايد دهغوی مخي ته ور شو اوهغوته د گلو نو دگيډ يو په وړاندی كولو سره هر كلي ووايو ،دهغوی په كار او مبارز ی وياړ وكړو . دادی هغه بلەدندەچي كولای يي شو او بايد هغه په شور او زو ږ سره اجرا كړو.ليكوا لان او په هيواد كي د فرهنگي چارو ټول كاركوو نكي دنده لري چي خپلوآثارو ته له اردو سره دخلكوددو ستي او داردو له اتلوا ليـو سره دهغو ی د يو والي په ځرگندو لو سره نو ی رنگ وروبخښي .دغه راز د قطعوقو ما ندانان بايد «دا. د. ج. دوسله والو ځوا كونو دعمو مي جشن دور ځي د ډاكلو»په خــا طــر پــرا خ كار تەســا ز ما ن ور كړ ی خـــو دداسي ورځي نما نځل لـــه اردو او وسله وال پو ځ سره دخلكو په تاريخي دو ستــی بدله شي .

او په پای كي دانقلا بـــی بهير پ مدې ډراو او حسا سه شيبه كي چي دز ړه ور اردو،دخلكودد وست او خدمتگـار اردو يعني دا.د. ج .دآ زادی بخښو نكي اردو دليكو ډر له پسي پيا وړ تيا او ټينگښت يو سپيڅلي او ځنډ نه منو نكي دنده ده ، دا. خ.د. گ .ټول ځړ ی د افغانستان دځوانانو دموـكراتيك ساز مان ... تو لنيز ساز ما نو نه او لنډه دا چي ټول هيواد پال دنده لري چي دكار او مبارز ی دټولو اړخونو دغو ښتني او دا ردو دسر تيری ، واړه ضابط او افســر دوياړ دترلاسه كو لو دشرا يطو دلر لو په نظر كي نيو لو سره دهغه ليكو ته ورو دانگي او له اردو سره خپله دوستي په لازيا ته رو ښانه توگه پــه عمل كي ثابته كړ ی ځو اردو د هيواد ددفاعي كامپلكس ددېري ځواكمني او متشـكلي بر خي په توگه لا پيا وړ تيا اوټينگښت ومومي ،او پەدی تو گه دهيواد په نورو دفا عي بنستو نوكي دځوا كو نو له يو موټی توب سره يو ځای «وسله وال پوځ وكولای شي د هيواد دځمكي دبشپړ تيا دساتني ،ملــي خپلواكي او دخلكو او هيواد په وړاندی ل ه انقلاب څخـه ددفاع لــه پاره په خپلوا كه توگه خپله سپيڅلي دنده ترسره كړی .»

## دكاراو تـــــوليد مخكښان

## ستـــــر بـــری

دا.خ.د.گ د مر كــزي كميتي عمو مي منشــي او د ا.د.ج د انقلا بي شوراړئيس ملگری ببرك كارمل دبگراميو نسا جي فا بريكي د گو ندی لومړی سازمـــــان د رپو ټ وركو لو په غو نډه كي دگډون په وخت كي د هغـيمو سـسي ستري تو ليدی دستگاوی هم وليدی او له كارگرانو سره يي د هغو د ستو نزو او كار د شرايطو په باب له نږدی خبری وكړی او د هغو دگټور او جوړوونكي كار څخه يي په منني سره يادونه وكړه .

ملگری ببرك كارمل وروسته له هغی چي خپله هر اړخيزه لار ښوونكي وينا واور ولـــه دغو نـــډی په پای كي يـــی دريو تنو كار گرانو ته هغه د وياړ نې نښنا نو نه چـــی د ا.د.ج د انقلا بي شورا لـــه خوا د هغو د سر ښند نواو زيارونو له امله منظور شوی وو د هغو هر يو په سينـــه وځړول. دا دی د رسا لتمنو كارگرانو سره خبری كووچي دغه ستر بری يی په بر خه شو يدی .

نښنان چي وينی ( هغه نښنان ته اشاره كوی چي په سينه يې ځړول شو يدی ) ملگری ببرك كارمل په هغه ورځ چي زموږ فابريكي ته يي تشر يـــف راووړ و ما ته يي را كړچي ددی مډال په لاستـــه راوړو سره فكر كوم له خوشحا لی څخه په جامو كي نه ځائيږم. كه څه هم هغو مره چي گوند، دولت او هيواد پر ما حق لري او له ما څخه كار غــــواړی هغو مره. كار مي نه دی كړی. له دی امله چي زموږ انقلابي دو لت زموږ د گوندی كـــار درنښت كوی خپل ځان ددغه ستر احسا س پوروړی بو لم او د خلكو د رهبر په مخكـــی مي ژمنه وكړه چي په جديت سره كار كوو چي د خپلـــی دستگاه تو ليدی پلان په سلو كي شل زيات تطبيق كـــړو. ددغو كلمو په ادا كولو سره يي په ښه كي بډ لون را ځي يوه شيبه يي مو سكا وكـــړه بيا يي دا رنگه دوام وركړ : لس كا له كيږی چي په دی دستگاه كي كار كوم او موږ تل له پلان څخه زيات كـــار كړ يدی د هغه كار په سيا ليو كي چي په هره مياشت كي د پنځو شا پو نو تر منځ كار اچول كيږی زموږ دستگاه تر اوسه پوری لو مړی مقام لري.

رڼا دغي رسالتمني كارگری د تو ليدی كارونو پەتر سره كو لو بر سيره د خپل اتـــل گو ند په لار ښوونه دانقلاب ضد توكو نو پر خلاف مبارزه اود بگراميو ولسو الي پـــه مر بو طاتو كي په تبليغي كار كي گډون كړيدی او اوس يـــی هم وسله پر اوږه د خپلونورو كارگرانو سره يو ځای دخپلي مو سسي په امنيت كـــی كا رنده برخه اخلي .

### دپلان دزياتوالي لپاره ژمنه

د رنگ وركو لو دستگاه كار گره رڼا چي په خپلـــه دستگاه كي د كار د سيا ليو د گو زاريزې ډلي قو ماندانه او د ويا ړنی نښنان گټو نكي ده په داسي حال كي چـــی له كارگرو ښځو ســــره د تو كرانو په تنظيم بو خته ده په دی باب چي ځر نگه يـــی دغه بری تر لا سه كړ يدی دا رنگه ووويل : دغه دوياړ نی

### په ټول ځواك د انقلاب په چوپړ كي

د بگرا ميو نسا جي فابريكي د سپينسيو تاوولو په ځا نگه كي كار په شدت سره جريان لري. د دستگاه ستره فضا د نيون په ځرا غو نو ســـره روښا نه وه . د دستگاه پـــه يوه څنډه كي يو شميــــر كار گران را ټول شوي ووپه خو ښي او خندا ډكو شوندو سره يي يو ځوان كار گر چي په سينه يي د وياړ نی نښنان ځړول شو يدی په غيږ كـی نيو لی او په خو ښي سره ځا ندی چي د هر ليدو نكي پاملر نه ځا نته جلبوی خواته يي ورځم چي په دی بــــاب معلو مات تر لاسه كـــرم د شاه ولي سره خبری كوم چي د وياړ نی د نښان په اخستو بريا لی شو يدی .

وايي : كله چي ملگری ببرك كارمل زما په سينه دغه نښنان ځړاوه ځما لپاره د خو ښـــی ډكه شيبه وه كله چي ملگرو زه په غيږ كي نيو لم بی ارادی مي لاس سيني ته يو وړ نښنان مي لمس كړ او ځان مـــی نيكمر غه وبا له چي د خپل هيواد د زيار كښا نو درهبر د مهر با نی وړ وگر زيدم .

ما ددغه ارزښتناك نښنان څخه د منني او درنښت له املـــه ژمنه وكړه په ټول قدرت سره دخپل گو ند او انقلا بی دولت په خد مت كي يم له يوی خوا د خلكو د نيكمر غی له پاره د تو ليد سطحه لوړه كړم او

(۳ مخ)

دبگراميو دنساجي كارگره رڼا

دبگراميو دنساجي كار گرشاه ولي

دبگراميو دنساجي كارگر سنگين

## دمبارکـــی پیغامونه

دافغانستان دخلك دموكراتيك گوند دمركزي كميتې دعمومي منشي اودافغانستان ددموكرا-تيك جمهوريت دانقلابي شورا درئيس ملگـــري ببرك كارمل لخوا دكيوبا دانقـــلاب داووه ويشتمي كاليزی له امله دكيوبا دكمونيست گونددمركزي كميتې دلومړي منشي او دكيوبـــاد جمهوريـــت ددولتي شورا او وزيرانو شورادرئيس ملگري فيدل كاستروروز په نامـه د مباركي پيغام هاوانا ته مخابره شويدی .

په پيغام كي دكيوبا وزړو خلكو دبياهم زياتوبرياليتوبونو په كار كي دډيرښوهيلو په ځرگندولو سره دكيوبا له كمونيست گوند اواتلوخلكوسره دافغانستان د خلك دموكراتيك گوند دافغا ـ نستان ددموكراتيك جمهوري دولت اوخلكودخلل نه منونكي دوستي او انترناسيونا ليستي پيوستون داډوركړ شويدی . باورځرگند شويدی چي پـــه راتلونكي كي هم ددواړو هيوادو دگوندونو، حكومتونو او خلكو ترمنځ نوی طرازاړيكي په ډينا-ميكه اودوامداره توگه وده كوي.

*

دافغا نستان دخلك دموكراتيك گو ند دمركزي كميتې دعمو مي منشي او د افغا نستان ددمو كرا تيـــك جمهوريت دانقلا بي شورا د رئيس ملگر ی ببرك كار مل له خوا د فلسطين داتلو خلكو دو سله وال پاڅو ن د يوو ـ يشتمي كاليزی له املـــه د فلسطين د آزادی غو ښتو نكي ساز مان داجرا ئيوی كميتـــی درئيس ياسر عر فات په نامه دمبار كي پيغام ليـږل شويدی. په پيغام كي ددغي تاريخــی ورځي له امله پخپله ياسر ـ غر فات او د فلسطين زړورو خلكو ته چي په ميړا نه دامپر ياليزم او صهيو نيزم پـــر خلاف جنگيږی دافغا نستا ن دخلك دمو كرا تيك گو ندد مركزي كميتي او دافغا نستان ددمو كرا تيك جمهور يـــت دانقلا بي شورا ، حكو مت او دسو له دو ستو خلكو مبار ـ كي ځرگند ی شو يدی او د صهيو نستا نو او امپر يا ـ ليستانو هغه له فتني ډ كي او جگړه ماری نقشي چـــی هدف يی له نړ يوالو منل شوـ يو نورمونو څخه په سرغړو ـ ني سره د فلسطين او عر بي خلكو د نيولو دوام او بـــه خلكو باندی د زور زيا تيو له زياتوا لی سره جو خت ددغو خاورو د خلكو د اصلي ... ـ مـيت بدلو لو او دعر بودسوله دو ستو هيوادو نو دخپلواكي او ځمكني بشپړ تيا تهديد ـ ول دی ، غندل شو يدی.

په پيغام كي دفلسطين د بر خليك د ټا كلو او ديـــو خپلوا ك دو لت د جو ړو لو په لاره كي دخپلو روا حقوقو دترلاسه كو لو په خاطــــر دفلسطين دخلكو له روا دا ـ عيی سره دافغا نستا ن ددمو ـ كرا تيك جمهور ی حكو مت او خلكو غو ځ ملاتړ ښودل شوی او باور ځرگند شو ی چي د صهيو نيزم او امپريا ـ ليزم ناوړه نقشي دفلسطين داتلو خلكو د ليكو په لا زياته بياوړ تيا او دسوله دو ست بشر يت په ملاتړ په او بوكي لاهو كيږ ی او دفلسطين خلك دخپلوا كي ، دحق او دفلسطين دو خپلواك دو لت دجو ړ ... په ... خپل حقو ق تر لاسه كوی .

*

دافغا نستان دخلك دمو ـ كراتيك گو ند دمر كـــز ی كميتي له خوا د فرا نسي د كمونيست گو ند دجوړ يدود پنځه شپيتمي كاليز ی لـــه امله دفرا نسي د كمو نيست گوند دمر كزي كميتي په نامه

(۲ مخ)

## بهرنی خبرونه

## تلويزيوني وينا

د شوروی اتحاد دكمو نيست گو ند د مر كزي كميتـــی عمومي منشي ملگری ميخائيل گر با چف د نوی عيســـوی كال له امله د شوروی اتحاد خلكو ته خطاب په تلو يزيوني وينا كي وويل : ۱۹۸۵ كال به زمو نږ په خا طره كي لـــه تو دوخي ډك كار له اميدونو ډك او د را تلو نكي له پاره د زړه ورو پلا نونو دطرحي دكال په توگه تل پاتی وی.

مو نږ ټول هغه ستو نزی چـــی د تير كال په پيل كـــی د ملي اقتصاد په برخه كي ور سره مخامخ وو په يـــاد لرو د شوروی اتحاد ټـــول گو ند او ټو لو خلكو دمسئلو د ښه والي او په اقتصــادی نتيجو سره چي په عمومـــی تو گه بدی نه وی ددغه كال د پای ته رسو لو په لاره كي ستری هلی ځلی كړ يـدی .

تير كال مو نږ په گډه ډير ښه ډير عادلانه او په معنوی توگه د بشپړ ژوند او دسو سيا ـ ليستي اصو لو او تفا هـــم دزيات ټينگښت له پاره كـــار كړ يدی .

تير كال زمو نږ له پـــاره زده كوونكي او له هغو پيښو ډك و چي د رخت بهير يې د هغه په تگ لوری كي لكـــه ځنگه چي وو چټك كړ مو نږ د سترو كارونو په سر تـــه رسو لو بری و مو ند او دغه كار مو په خو ښنده تو گه او په ميني او ولولو سره سرته ورساوه .

ملگری گر باچف زيا تــه كړه مو نږ غواړو د سوسيا ـ ليستي نظام له ستــــری ځوا كمنی څخه بشپـــړه

(۵ مخ)

د ش.ا.ك.گ ۲۷ مه كنگره

د ملگری م. س. گرباچف كتاب

(پنځم مخ)

# دمبارکی پیغامونه

(دلومړی مخ پاتی)

دمبارکی پیغام پدی شرحه مخابره شو یدی.

**د فرانسی د کمونیست گوند دمرکزی کمیته**

**د ۱۹۸۵ دسمبر کابل**

**گرانو ملگرو!**

اجازه راکړی د فرانسی دکمونیست گوند دجوړیدو دپنځه شپیتمی کالیزی له‌امله دافغانستان د خلك دموکراتیک گوند دمرکزی کمیتی ډیری تودی مبار کی او هیلی تاسو گرانو ملگرو او ستاسی له لاری دفرانسی تولوکمونیستانو، کار گری طبقی او تولو زیار ایستو نکو ته‌وړاندی کړو.

دفرانسی کمو نیست گوند دخپلی ژوو ری مبا رزی د پنځه شپیتو کلو نو په تر خ کی دسو لی او ټولنیزی‌ترقی په‌لاره‌کی سترخدمتونه کړیدی دفرانسی کمو نیستانو دپر گنیزی جبهی په جوړ و لو، دکار گر ی طبقی د عمل دیو والی په ټینگښت او دالمان د فاشیستی اشغا لگرا نو پر خلاف دمقاو مت د جبهی په جو ړولو، دکار گر ی طبقی‌د بنیادی گټو په دفاع اودسولی او ټولنیز عدالت په کار کی زمونږ دپیری د مخکښو افکار و او دپرو لتار ی انتر نا – سیو نالیزم داصو لو دتحقق په لاره کی دمخکښی رو ل لو بو لی دی.

دافغا نستان دخلك دمو- کراتیک گو ند له متر قی بشر یت سره یو ځای دفرا- نسی دکمو نیستانو باو قفو اوپتمنو مبارز و ته په درنه ستر گه گور ی، عقیده لری چی نن‌هم دفرانسی کمونیست گو ند دنړی په انقلابی غوز ځنگ او دکار گر ی طبقـی او دفرا نسی دنورو زیار – ایستو نکو د بنستیز و گټو په ملاتړ کی ار زښت نا که برخه واخلی.

مونږ پداسی حال کی چی دافغا نستان د خلك دموکرا- تیك گو ند او د فرا نسی د کمونیست گو ند ترمنځ‌دښو اړ یکو دپرا ختیا له امله‌خپله خو ښی څرگند وو، بوره‌یقین لرو چی زمونږ دگو ند و نو دفعالی برخی اخیستنی پـه نتیجه کی به دغه دو ستانه اړ یکی په را تلو نکی کی هم ددواړو هیوادود خلکـو او په نړ ی کی دانقلابی بهیر دودی په گټه خپله دود ی‌او بشپړ- تیا لاره لا زیاته ووهی.

نیکمرغه دی وی دفرا نسی دکمو نیست گو ند دجو ړیدو پنځه شپیتمه کالیزه. دملگر- تیا په تود و دروودونو سره.

دافغا نستان د خلك دمو – کراتیك گو ند مر کزی‌کمیته.

*

دافغا نستان د خلك دمو- کراتیك گو ند دمر کـز ی کمیتی دعمو می منشی او د افغا نستان ددمو کرا تیـك جمهور یت دانقلا بی شورا د رئیس ملگر ی ببر ك کارمل او دافغا نستان دد مو کراتیك جمهو ریت د وزیر انو شورا درئیس ملگر ی سلطا نعلی کشتمند له خوا د نـــو ی عیسوی کا ل له امله ددو – ستو هیوادو ددو لتو نــود مشرانو او دوزیرا نو شورا درئیسانو په نامه د مبار کی پیغا مو نه استو ل‌شویدی.

# دهرات دسبزک کان بیا په کار لویږي

## دا.د.ج دوزیرانو په شوراکی

دهغو تو لیدی او اقتصا- دی واحدو نو بیا جو ړو ل چی دانقلاب دد ښمنا نو اود سیمی دار تجاع او امپریالیزم دبی شر مو لاس وهنو له‌امله له فعا لیت څخه لو یدلی‌په اقتصا دی برخه کی دا.د. ج دحکو مت له اساسی دنـدو څخـه دی.

په دی مقصد دا.د. ج‌حکومت دسیمه ییزو شرا یطو له‌مخی کمپلکس او اغیز منو تدبیرو- نو او اقدا مونو ته په ټاکلی ډول ساز ما ن ورکـوی اود تولیدی واحد ونوداقتصا دی فعالیتو نوپه بیا پیل لا س پوری کوی.

دا. د. ج دوز یرا نو شورا په دی لړ کی دهرا ت د ډبرو سکرو دکا ندبیا په کاراچولو په مسئلی د ۱۳٦٤ کال‌دقو- س د۱۸ نیټی په غونډه کـی خبری وکړی او په دی برخه کی یی ټاکلی تدبیرو نه‌ونیول په دی باب دا.د. ج دکورنیو چارو او دکانو او صنایعـو وزار تو نو ته دنده ور کـړ شو ه چی په یوه اوو نی کی دهرا ت د سبزك د ډبروسکرو د امنیت د برابرولو او سبزك ته دتیر شوی سرك ټو لـی اړوند مسئلی وخیړی او حـل یی کړی.

همدا رنگه دا.د.ج دساختمانی چارو وزا ر ت ،د پـلان جو- ړولو دو لتی کمیتی او دنورو اړو ندو څانگو په گډو ن د کانو او صنایعو وزار ت تـه دنده ور کړ شوه چی دهرات دسبزك د ډبرو سکرو دکا ن دبیا کارو لو د ساز ما نی او تخنیکی تدبیرو نو پلان ،ددی ټکی په پام کی نیو لو سـره چی له هغه څخه کار اخیستل دی په لنډه موده کی پیل‌شی، په‌یوه میاشت کی جـو ړ او عملی کړی او دسبزك دډبرو سکرو دکان په فعا لو لوسره له دغه کان څخه د سکـــرو ضمنی ایستل تامین کړی.

دا. د. ج دترا نسپـــور ت وزار ت دنده لری چی دشمال لو یدیځ زو ن دقرار گاه پـه همکاری دهرا ت ښار تـــه د سبزك له کان څخه د ډبرو سکرو منظمو لیږ دو لو تـه ساز مان ور کړی.

برسیر ه پردی په دغه‌غونـډه کی د ۱۳٦٤ کال په اتو میا- شتو کی دهلمند او پکتیکـا ولایتو نو ددو لتی قدر ت د پراختیا او ټینگښـــت او اقتصادی – ټو لنیز ی ودی دکمپلکس پلانو نو د تطبیـــق دجیو د یزی او کار توگرافی دعمو می ادار ی کار گرا نو ته په از مینښتی بڼه دجا یز ی دمزد څانگو دسیستم دپراختیا په‌برخه کی دسکتور ی وزار- تونو له خوا دنو رمو نو،نورـ ماتیفونو او ستند ردو نـــود طر حی ، ټاکلو او عملی کولو په باب اړو ند مسئلی تـر څیړنی لاندی ونیو ل شو ی او دهر ی یو ی طر حه شوی مسئلی په برخه کی ار ز – ښتنا ك اور ځنده تصمیمو نه ونیول شول.

همدا رنگه وپتییل شـوه چی باید داسی یو نظمو ټاکل شی چی دهغه له مخی دپلان جوړولو ددو لتی کمیتی پـه موا فقه داړ و نه وزار تونو او ادارو له خوا نوز مونه، نورما تیفونه او ستندردونـه طرحه او تر تیب شی.

دا.د. ج دپلان جو ړو لو دولتی کمیتی ته ونده وسپارل شوه چی دنوز مو نو، نورما- تیفونو او ستندردونو دطرحی او وړاندی کو لو په بـــاب میتودیکی لار ښوو نی برابری او عملی کړی.

بر سیره پردی د پـــلان جوړو لو دو لتی کمیته دی‌د وزار تو نو ،دو لتی کمیتو او اړو ند ادارو په گډون دنور- مونو، نور ما تیفو نو اوستند ردونو دتدوین او منـــظوری مقرره په تیره بیا په دی‌برخه کی د وزار تونو،دو لتی‌کمیتو او ادارو ددندواو صلا حیتونو دحدو دو د ټا کلو له پام کی نیولو سره جوړه‌کړی.

ددغو تدبیرو نو اوتصمیمو نو نیول نه یواز ی سیمه ییـز ار زښت بلکی د ټول هیواد لپاره هم ار زښت لری عملی کول‌یی له‌اقتصادی فعا لیتونو او دهغو له لاسمو ن ســره عملی مرسته کوی.

برابر وو نکی : میرویس

# په جوزجان کی دانتخاباتو دوام

دجوزجان ولایت دقرقین د ولسوالی مربوط دخان تیپی، شورتیپی، تولك اودینارد کلیو دانتخاباتی حوزو دخلکـو د استازیو د شورالومړ نی‌غونډه پدی وروستیو وختوکی په‌هغی ولسوالی کی په جلاجلا توگه جوړی شوی.

په پیل کی دباورلیـك د کمیسیونونو رئیسانو په هغی ولسوالی کی دانتخاباتو دکار اوددولتی قدرت اوادارې پـه سیمه‌ییزوارگانونوکی دخلکو داستازیودټاکلوپه‌خاطر ددوی دبرخی اخیستنی پـه بـاب رپوټونه وړاندی کړل.

وروسته ددغو کلیو دخلکو له استازیوڅخه‌دخلکوداستازیو دشورا د اجرائیوی کمیتـو رئیسان، منشیان او غـړی وټاکل شول.

دغه راز پدی غونډو کـی ددغوکلیودخلکود استازیو او ولس تنه دقرقین دولسوالی دخلکو داستازیو شوراته ور- وپیژندل شول.

دیوبل خبرله‌مخی دجوزجان ولایت په مربوطاتوکی ددولتی قدرت اوادارې پـه‌سیمه‌ییزو ارگانونوکی دخلکو د استازیو انتخابات په‌بری سره روانـدی چی‌برون اوورمه‌ورځ دشبرغان دمرکزمربوط داسلام جوی، اسعدآبادافغانیه، اسعد آباد عربیه، جلال آباد، یراغلی – افغانیه، خواجه دوکوه افغانیه خواجه دوکوه ازبکیه اوسالتق خور دکلیو په سلگو نو تنـو اوسیدونکو دریو انتخاباتـی حوزوکی دخپل باوروړ ۳۳تنه استازی دسیمی‌شوراته‌وټاکل.

باختر

د کابل‌ښار داجرائیوی کمیتی‌د ساختمانی تصدی دریاست‌دلیك لوست دکورس‌یوه څنډه

## دشهید انو د خاطری درناوی

دایران له انقلابی جنگیالیو سره دیو ستو ناو دایر ان دخلکو د فدا ئیانو دسماز مان (اکثریت) د شهید و مشرا نو او کا درونو د خاطر ی ددر- ناوی غونډه پرون دافغا نستان ددمو کرا تیك جمهو ریت د ټولنیزو ساز ما نونو له‌خـوا دکابل په ښار کی جـو ړه شوه.

پدغه غونډه کی دا یرا ن دتوده یی، فدا یی او نـورو انقلابیونو داتلو انقلا بیانود شهادت په وړا ندی دافغا – نستان د خلکو ژور ی خوا- شینی څر گندی شوی هغه شکنجی او سپړ و ز نی چی دایرا ن دارتجا عی ر ژیم د جلادانو له خوا دایرا نډ‌آزا- دی او دخلکو د نیکمرغی دلاری دمبارز ینو پر ضد عملـی کیږ ی سختی وغندل شوی.

## کارگرانو ته د اپارتمانونو ویش

د ا.خ.د.گ، دجوړیدو دیو ویشتمی کالیزی په وياړ‌دکابل ښار دکور جوړولو دکامبینا تو پنځوس تنه سابقه لرونکی او نوښتگرکارگران اوکارکوونکی پرون‌په‌کارگری کلی‌کی‌داپار – تمانونو خاوندان شول.

ددغو اپارتمانونوپه ویشلو سره اوس دکورجوړولو دکا- مبیناتو پنځه سوه تنه‌کارگران له خپلوکورنیوسره دهغه‌کلی په اپارتمانونو کی‌ژوند‌کوی.

ددغو پنځوسو اپارتمانونو کیلی‌گانی پرون دمراسمو په‌ترځ کی دکابل دښار دخلکـو د استازوودشورادااجرائیه کمیتی دمرستیال لخوا مستحقینو ته ورکړ شوی.

باختر

# دشوروی اتحاد دسولی له نوښتونو ملاتړ

## دا.د.ج دډاکترانو دعلمی ټولنی اعلامیه

شوروی اتحاد د خپل‌سوله غو ښتو نکی سیا ست له‌مخی او د سو له دوست بشر یت په هغو کی دنړی درسالتمندو ډاکترانو له څـر گندی غـو- ښتنی سره په بشپړ یووالی کی د ۱۹۸۵ کال د اگست‌په شپږ مه د اټومی ښښتنی‌دجدی خطر د لیری کیدو او د وسلو د سیا لیو د مخنیوی په لاره کی په نوی او زغنده نو ښت لاس پوری کړ. شوروی‌اتحاد د اگست له‌شپږ می نیتـی څخه د ۱۹۸٦ کال د جنوری تر لو مړ ی نیټی پوری دټولو اټومی آزمو ینو او چاودنو په یو اړخیز بند یدو سره ټول اټومی قدر تو نه او په‌لومړی گام‌کی دامریکامتحده ایـالات را وبلل چی د شوروی اتحاد دمثال په تعقیب سره د نړی د سیا سی فضا د ښه والی‌او د اټومی وسلو د زیرمتونونو د کمښت په لاره کی چـی د بشر یت د پا تی کیدو او شته والی په وړا ندی کلـك گواښ دی خپل رښتینی ښه نیت څر گند کړی.

د شوروی اتحاد د سو لی د نو ښتو نو په وړا ندی د واشنگټن د اداری منفی اوبی مسئو لیته عکس العمل چی‌په نیوا دا کی د اټومی چاودنوپه سر ته رسو لو او د ریگـن د ستورو د جگړی دپروگرام په چټکتیا سره یی د جگړی اور بلوونکی ما هیت له‌پخوا نه زیات رسواء شو، نړیوالو په هغو کی د سو لی ددفاع په خاطر د نړی دډاکتر انـو د غور ځنگ ژوره اند یښنه را وپاروله.

دنړی ډاکترا ن‌او د طبـی چارو نور کار کوو نکی چی له ټو لو نه مخکی د ډیـر اساسی بشری حق یعنـی د ژوند د حق د دفاع ستــر مسوولیت په غاړه لری‌دخپلـی پو هی او ارزښت ناکو تجربو له په کار اچو لو سره تـل پدی لټه کی وو او دی چی په اصطلاح په یوه اټو می جگړه کی د بری د تر لاسه کو لـو دروغجنه افسا نه له پخـوا زیا ته رسوا کړی او پــه اصطلاح د سترا تیژیکی‌دفاع اردلو مړی گوزار د نـورو وسلو له پر غلیز ما هیت څخه په پردی پور ته کو لو سره د بشری ټو لنی د ډیر لوړ ارمان یعنی سو لی‌ددفاع په لاره کی خپله وجیبه سرته ورسوی.

د افغا نستان د دمو کراتیك جمهوریت د طبیبا نو علمـی ټو لنی په هیواد کی دټو لو طبی کار کوو نکو په‌نمایندگی په نړ ی کی د اټومی وسلـو د چاودنو او آز موینو د پای ته رسو لو په لاره کـی د شوروی اتحاد د سو لـــی د پیشنها دونو او نو ښتونو بشپړ ملا تـــر کړ یدی، د افغا نستان د دمو کرا تیك جمهوریت د طبیبا نو علمی ټو لنی د سو لی په خا طر د نړی د طبیبا نو له‌غورځنگ سره په یو غږ کیدو کـی د امریکا له متحده ایا لاتو او نورو اټومی څواکونو څخـه غواړی چی له سلیم عقل‌څخه په کار اخیستلو، سیا ســی واقعبینی او متقا بل باورسره د اټومی وسلو د آز موینو د بندولو په باب د شـــوروی اتحاد نو ښت ته چی دامریکا دمتحده ایا لاتو په یو ځـای کیدو سره د هغه د اجرا کیدو موده اوږدیږی مثبت ځـــواب وړا ندی کړی، مو نږ بشپړ باور لرو چی د ټو لو سو له دوستو څواکونو او له هغوی څخه د طبیبا نو یو مو ټـــی هم آهنگ او جدی اقدا مات کو لای شی او با ید نړ ی د اټومی نا تار له نه جبیـــره کیدونکی مصیبتو نو اوغمونو څخه په امن کی وساتی.

باختر

# دپوتورکولو غونډی جوړیدل

دمخابراتو وزارت د گوندی فعالینو غونډه دافغانستان د خلك دموکراتیك‌گوند دمرکزی کمیتی دسیاسی بیرو د غړی اود مخابراتو دوزیر ملگـری محمد اسلم وطنجار په گډون ورمه ورځ جوړه شوه.

ددی غونډی په پیل کــی د غونډی اساسی رپوټ دمخا – براتووزارت دلومړ نی گوند ی سازمان دمنشی نبیشاه حبیبی له خوا ولوستل شو.

وروسی دغـونډی اوو تنو برخه والو داساسـی رپو ټ په باب نظر څرگند کړ.

دغه‌راز پدغه‌غونډه کی‌دغونډی یوشمیر برخه‌والودچارو دښه کیدوله ا مله خپــل رغنده پیشنهادونه وړاندی کړل.

دغونډی کار د افغانستان دخلك دموکراتیك‌گونددمرکزی کمیتی منشی ملگری نیازمحمد مومند وخیره د افغانستان د خلك دموکراتیك گونددمرکزی کمیتی دشپاړسم پلینـــوم د فیصلو او تصمیمونو د تحقق په ارتباط یی دغونډی دبرخه والو دکار او فعالیت اساسی لوری مشخص کړل.

غونډه دمصوبی په‌صادریدو سره پای‌ته‌ورسیده.

باختر

# ورکتون پرانیستل شو

دکابل‌دزاړه ښار داستوگنی دځای وړکتون پرون دافغا – نستان دخلك دموکراتیك‌گوند دښنسټ ایښودو دیو ویشتمی کالیزی په ویاړ دمراسمو پـه ترځ‌کی ددغی سیمی دیوسپین ږیری اودافغانستان د خلـك دموکراتیك‌گوند دمرکزی کمیتی دسیاسی بیرو دعلی‌البدل‌غړی اودکابل‌ښارد‌گوندی کمیتی د منشی ملگری ظهور رزمجـو لخوا پرانستل شو.

خبرځای وویل همدا اوس په ټول هیواد کی ټول ۱۵۸ وړکتونونه شته چی دغه‌شمیر له انقلاب نه دمخکی وخت په پرتله لس ځلی وده کړی.

دکابل دزاړه ښار داستوگنی دځای وړکتون چـــی پرون پرانستل شو دسلوماشومانو ظرفیت‌لری او دشیدو خور د خوب، لوبو، ډوډی خوړلو، لوست کوټی اونور ضروری ملحقات لری دی پدغه وړکتون کی دوړکتونونو د ریاست‌لخوا ۲٤ ښوونکی دماشومانو پـه روزنه اوپالنه بوخت دی.

باختر

# د بریښنا له سب ستیشن څخه گټه اخیستنه

دا.خ.د.گ د ښنســـټ ایښود لو دیوو یشتمی‌کالیزی دهر کلی له امله دشما ل‌سب ستیشن دپروژ ی لو مړ ی پړاو چ ی‌کار یی بشپړ شوی دسه شنبی په‌ور ځ له غر می مخکی دا.خ.د.گ دمر کز ی کمیتی دمنشی ملگری نیاز – محمد مومند له خوا دپټی په پری‌کولوسره پرانیستل شو.

دشمال سب ستیشن‌پروژه دبریښناو زار ت یوه مهمـه پروژه ده چی دکابل ښار د بریښنا رسولو په څلورم‌پړاو کی‌یی له دوو کلو زا هیســی سا ختمانی چار ی تر سر ته رسولولا ندی نیول شوی‌وی. ددغه سب ستیشن په کـا ر اچولو سره چی ظر فیت یی اتیا میگا واټو ته رسیږ ی‌د شمال لویدیځ داضا فه بار ی ستو نز ی لری شوی اودکابل ښار یوی برخی ته دبریښنا ویش دنویو جکشنو نو لــه ودانولو او مونتاژ و لو ورو- سته په‌ډاډه‌توگه ترسره کیږی.

دپرو ژی دطر حی اوډیزاین چار ی دتخنیکی چارواودکابل ښاریانو داړ تیاوو له څیړ نی ورو سته ددو ست هیوا د دمو کرا تیك آلمان دالکترو – تخنیك کمپنی له خوا تر سره شوی اود هغی تجهیزا ت د دریو ملیو نو او څلورو سـو زرو ډالرو په‌بیه دآلمان ددمو- کراتیك جمهور یت له‌کریدت څخه‌برابرودل شویدی.

حیات حرمت

# دا.د.ج دبهرنیوچاروو وزارت اعتراضیه

دالمان دفدرالی جمهوریت دسفارت شارژدافیر پرون له غرمی وروسته په دریو بجو د بهرنیوچاروو وزارت ته احضار اوپدی معنی یو اعتراضیه لیـك ده ته وسپارل شو.

لکه څنگه چی لیدل شوی د۱۹۸۵ کال په دوو وروستیو میاشتو کی دالمان په فدرالی جمهوریت‌کی له‌عوام غولوونکو لاروڅخه په استفادی سره د افغانستان د دمو کراتیـــك جمهوریت ضد تبلیغاتی او د دښمنی د اقداماتو دسازمان ورکولو پراخه مبارزه په‌بی – ساری توگه سخته شوی ده.

رسمی مقامات لکه د المان فدرالی جمهوریت د کابینی‌او پارلمان غړ ی اونوری ارتجاعی او محافظه کاری ټولنی ا و څواکونه له انقلابی ضدکسانو سره په ملگرتیاکی دمسوولیت له احساس اوددولتونو تر منځ دحقوقو نورمونو او موازینـو نه له پاملرنی پرته بیا هم د افغانستان د دموکـــراتیك جمهوریت په کورنیو چارو کی په ډاگه لاس وهـی اودافغا- نستان ددموکراتیك جمهوریت دملی واکمنی او خپلواکی پر اصل باندی دسترگو په‌پټولو سره زمونږ دخلکو دگټوپرخلاف عمل کوی.

دبن په ښارکی د افغـا نی ضد اوشوروی ضد ده کاسی دننداړتون دپرانستلوپه وخت کی دالمان دفدرالی جمهوریت داقتصادی همکاریو د وزیـــر یورگن وارنکا، دبهرنیو چارو دوزیر هانس دیترش گینشمر اوددغه هیواد دنورو سیا سی شخصیتونو وروستی څرگند- ونی ددی خبری ډیر څر گند مثال دی.

دپاملرنی وړ ده چی دالمان دفدرالی جمهوریت صدراعظم ښاغلی هلموت کول او دهغه هیواد نورو سیاستمدارانو د افغانی ضد معلوم الحاله ټولنو ددښمنی له عملونو سره خپل تفاهم څرگند کړی او د(سولی لپاره دلوږی) دتش په نا مه اعتصاب برخه والوته چی د هغه لارښودونکی بیا هم‌تودن- هوفردی‌دپیوستون پیغام‌لیږی.

دالمان دفدرالی جمهوریت دډله ییزو اطلاعاتو انحصاری وسایل بی‌له ځنډه په‌نه‌ستړی کیدونکی توگه دافغانستان د دموکراتیك جمهوریت په باب دروغ او جعلیات خپروی او د مغشوش او واقعیت نلـری تصویر په جوړولوسره هڅه کوی چی له انسانی عواطفو او احساساتو څخه خپلوله غرض نه ډکو هدفونوته درسیدو په خاطر استفاده وکړی.

معلوم الحال عناصر او په هغوی پوری تړلی ټولنی هڅی کړی چی دجاسوسانو اوخان پلورونکو په روزنی سره د افغانستان ددموکراتیك‌جمهو- ریت پرضدخپلو بی شرمو دروغواوتبلیغاتومبارزه د عامه افکاروگډوډولواوپه خپله گټه دگمی اخستنی په مقصدپراخه کړی لکه څنگه چی دالمان د فدرالی جمهوریت دپارلمان د استازی یورگن تودن هوفر په نوښت یی پدی وروستیووختو کی دتبلیغاتی فعالیتونو لپاره دشپیتو تنوانقلاب ضد عناصرو لپاره دروزنی یوکورس جوړ کړیدی.

دالمان دفدرالی جمهوریت حکومت اودهغه هیواددښی‌اړخ نوری ټولنی د افغـانی خان- پلورونکو اونوکر صفته‌انقلاب ضد کسانو ملاتړ کوی اوهغوی دافغانستان د دموکراتیـك جمهوریت پرخلاف‌دامپریالیزم او ارتجاع دنااعلان شوی‌جگړی ددوام په مقصدله‌خپلوډول‌ډول مرستوڅخه برخورداره کوی.

دپاکستانی مقاماتو له لاری څخه افغانی انقلاب ضدکسانو ته دنورو دوه سوو ملیونـــو المانی مارکونو دمرستی ژمنه ددغی جگړی دسختوالی په‌کار تی یوبل گام دی.

د افغانستان ددموکراتیك جمهوریت دبهرنیو چـــارو وزارت د افغانستان ددمـو – کراتیك جمهوریت پرخلاف د فدرال المان دمقاماتو دغه ډول له دښمنی ډك عملونه سخت غندی او دهغو له امله خپـل اعتراض څرگند وی.

مونږ عقیده لرو چی دافغا- نستان ددموکراتیك‌جمهوریت پرخلاف دامپریا لیستی نااعلان شوی جگړ ی دسختوالی پـــه مقصد دالمان د فـــدرالـــی جمهوریت دشخصیتونو ټولنو اوسیاسی سازمانونوددښمنانه فعالیتونواودافغانی ضد ماجرا- غوښتونکـــی سیاست دوام د دواړو هیوادو ترمنځ اړیکـــی لازیات زیانمن کوی او زمونږ سیمه کی به دسولی اوثبات دتامین دبهیر دورانولو په‌لاره کی عمل وکړی.

دافغانستان ددموکر ا تیك جمهوریت دبهرنیوچاروو وزارت دالمان دفدرالی جمهوریت له مقاماتو څخه یوځل بیاغواړی چی دافغانستان ددموکراتیك جمهوریت پرخلاف دغه غیر- دوستانه دریځ اوله دښمنـــی ډك‌فعالیتونه‌ډیر ژر بند کړی‌شی.

# د ساختمانی چارو وزارت

دا.د.ج، دوزیرانوشورا په پیشنهاداود ا.د.ج، دانقلابی شورادرئیسه هیات‌په‌تصویب دفوایدعامی وزارت نوم دهغه دکاردخصوصیت او دفعالیت دڅرنگوالی له مخی د ا.د.ج ، دساختمانی چارو په وزارت تعدیل شویدی . **باختر**

# ستر بری

**(دلوړی مخ پاتی)**

له بلی خوا د خلکو دنیکمرغی د دښمنا نو په له مینځه‌وړلو کی فعا له برخه واخلم .

شاه ولی د خپلی موسسی د مخکښو کار گرانو له جملی څخه‌دی او په خپل دولس کلن کارگری عمر کی‌یی ددندو په سر ته رسو لو کی ورتیا ښودلی ده او ځو ځلی په‌مادی او معنوی‌توگه تقد یرشویدی.

# دهیواددسمسورتیا په‌لاره کی‌مسوولیت

سنگین د بگرامی دفابریکی د اوبد لو د دستگاه تکره او غښتلی کار گر دی چـــی د ویاړنی د نښان په تر لا سه کو لو بر یا لی شو یدی چی په خپل دوه ویشت کلـــن کارگری ژوند کی یی زیا تـــی تجر بی تر لاسه کړ یدی او په دی ځا نگه کی یی زیات شمیر شا گردان روزلی دی هغه به تو لیدی برخه کی د دندو په سر ته رسو لـــو بر سیره د مو سسی په‌فعال سا تلو او (تر میمو لو) کی هم تر اوسه ارزښتنا که‌برخه اخستی ده چی د پوښتنی په ځواب کی یی وویل: هغه‌ورځ چی ملگری ببرك کارمل پـــه موسسه کی د سر ته رسید لو. کارونو څخه د مننی له امله موږ کار گرا نو تـــه د ویاړنی نښا نو نه را کـــړل زموږ په ژوند کی به د یـــوی ارزښتنا کی او مهمی پیښی په تو گه پا تی شی .

ددغه ستر ویاړ د درنښت له امله موږ کارگرانو دهیواد د زیار کښی انسان دنیکمرغی او د انقلاب د لا زیات‌غوړیدو په لاره کی له پخوا زیات په خپلو مسوو لیتو نوپوهیدلی یو او د خپل گران رهبر پـه وړا ندی مو ژمنه وکړه چی موږ به په ټول ځواك شپه او ورځ کار وکړو او په خپلـه مو سسه کی به دتولیدسطحه لوړه‌کړ واودموسسی‌پلان‌به په سلوکی‌سل زیات‌تطبیق کړو.

هغه زیاته کړه : څنگه چی زموږ د فا بریکی زیـــا ت ما شینو نه د چین له هیواد څخه برابر شوی دی او ددغو ما شینو نو فا لتو پـــرزی، هڅمو نیست چین د موسسی په واك کی نه ور کوی په‌لږو عوارضو سره ما شینو نه له فعا لیت څخه پا تی کیږی . موږ دغه نیمگړ تیا تـــل د دستگاه د نورو کار گرانو په مر سته له داغمه پرزو څخه په کار اخستلو او د نووپرزو په جوړولو سره له مینځـــه وړی ده او د دوه سوه ځلو- ښتلت ما شینو نو د مو نتاژ چاری مو هم سر ته رسو لی دی‌چی اوس په دستگـــاه کی فعا لیت کوی .

د افغا نستان د خلکوزښتینی دوست ستر شوروی اتحادڅخه د ما شین الاتو له لاری اوڅه په خپل ستر هیواد کـــی د کارگرانو د روزنی له لاری‌او څه د متخصصینو د را لیږلو له لاری ددغه مو سسی لـــه کارگرانو سره مر سته کړیده چی ددغی مو سسی کارگران ددغی‌بی‌سازی مرستی‌مننه‌کوی.

**کریم شریف**

# جرگی زموږ دخلکو لرغونی دوددی

**پوښتنه :**

د وینو تو یو لو دبندو لو په باب د لويي‌جرگی او دقبا یلو د عا لی جر گی د پریکړو داجرا په باب‌دافغا- نانو ترمنځ څه تد بیرو نه نیول شوی دی ؟

**ځواب :**

البته لکه‌ څنگه چی پوهیږی دافغا نستان دمو کرا- تیك جمهو ریت خلك دوینو تو یو لو او ورور و ژنی ددوا م له امله‌چی دارتجاع او امپریا لیزم دنااعلان شوی جگړی دتپلو له امله په افغانستان تپل شوی‌خوریزی دا.خ.د.گ اودا.د.ج دو لت هم په لو یه جر گه او هم د قبا یلو په عا لی جرگه کی هغه لاری و پلټلی چی د ورور وژنی د غه تپل شوی جگړه پای ته ورسوی. په دغو دوو سترو جر گو کی یو غوره هدف دا و چی و ینی تویونی پای ته و رسیږی .

هغه تدبیرو نه چی پدی جرگو کی ونیو ل شول‌دا.د.ج په پرله پسی تو گه دوام‌ورکړ پدی ما نا چی د قبایلو ددایمی جرگو تر ل هغه فعالیتو نه چی دا.د.ج په دوران کی رامنځته شوی دی او په اطرا فو کی د قو مونو اوقبا- یلو چارو فعالیتو نه اودولتی قدر ت د سیمه ییزو ادارو ارگا نونو فعالیتو نه او دغه راز دا.خ.د.گ کلکه پا ملر نه چی د ثور انقلاب رهبر ی‌کوی په بشپړه تو گه او په لومړی گام کی دی کا‌ ته متو جه ده چی دغه وینی تو یو نی او ورور وژنی پای ته و رسوی. دوینو تویو نی د بندو لولپاره ډیره ستره او یا ډیره غوره او اغیزه ناکه طرحه له پاکستان او ایران سره د ا.د.ج د سر حدو نو پو ښنل دی چی دهغو په خا طر ز یات اوخا- نگړی تدبیرو نه نیو ل شوی دی . د سر حدی خوا کو نو پیاوړ تیا او یو مو ټی کول دافغا نستان له انقلاب، آزادی او خپلوا کی څخه د ساتنی لپاره په خپله له سر حدی قبایلو څخه د ملیشا وو جو- ړول ،او دغه راز سر حدی قبایلواو دافغانستان نو رو خلکو ته دامپریا لیستی‌لاسوهنو اودهغو دویرونکو نتیجو پراخه توضیح له دغو تدبیرو نو څخه دی . ددی فعالیتو نو له امله دا.د. ج د سر حدو نو تاکلی برخی پو ښنل شوی او له ایران‌اوپا کستان سره‌دافغا- نستان دپاتی سرحدونو پوښنل دوام لری .

دا.د.ج دسرحدونو د بشپړ پو ښنلو لپاره ټا کلی پروگرا- مونه تر لاس لاندی نیو لی. له نیکه مر غه دغه پرو گرام په بری سره مخ په وړاندی روا ن دی .خو یوه مسئله د غور وړ ده اوهغه داده چی د دښمنی بندو ل په بشپړ ډو ل دا مپر یا لیزم‌او په سر کی یی دا مریکا دمتحدو ایا لاتو د لاس وهو نکو دلا- سو هنو په بندو لو پوری اړه لری چی دنړی په ټو لوسیمو کی چی هلته پر گنی او خلك دخپل بر خلیك د ټا کلو په خاطر سر پورته کوی دغه ستر شیطان هلته حاضریږی اود خپلو گټو دزیا نمن کیدو په پلمه هلته لا سو هنه کوی.

دا.د.ج د ژنیو دخبرو له لاری کو ښښ وکړ چی‌بهرنی لاسوهنی چی په افغانستان کی د ورور وژني او وینو تو- یو لو سبب کیږی ، پای ته ورسوی . او له همدی امله و چی دا.د. ج ټینگار و کړ چی دغه خبری له غیر مستقیم شکل څخه مستقیم شکل ته راشی .

دا.خ.د. گ دمر کز ی کمیټی عمومي منشي اودا.د.ج دانقلابی شورا رئیس گران ملگری ببرك کارمل دافغانستان له‌ټولنیزو شخصیتو نو سره په‌جرگو اولیدنوکتنو، اودغه‌راز له‌بهرنیو میلمنواودوستانوسره تل دا.د.ج .دریځ څرگندکړیدی اوڅرگندوی چی‌موږ حاضریوله پاکستان اوایرا ن سره دمستقیمو خبرو له پاره په یوه میز کښینو د هغوی خبرو ته غوږ کیږ دو او له هغو ی سره دافغانستان دشا وخوا حالاتو د حل کو لو لپاره‌خپلی طرحی ترمنځ وا چوو . ملگری ببرك کارمل ویلی دی چی که چیری‌هغوی فکر کوی چی حق په‌جانب دی ولی‌له مخا مخ خبرو څخه و یریږی .او که چیری هغوی دا مریکا دمتحده ایا لاتو له خوا نځ د یکتی کیږی . ددی لپاره څه عذر او پلمه مو جود ده چی د وی له مخامخ‌خبرووډه کوی‌اوطبیعی ده،پوښتنه کوونکی ،دو ستان، ملگری او دافغانستا ن پتمن اومبارز خلك باید پوه شی‌چی په وینو تویو لو بری ددی ایجاب کوی چی زموږد هیواد پر خلاف امپر یا لستی لا- سو هنی بندی شی .

دغه راز پوښتنه طر حه شوه چی د قبایلو په باب دپا- کستان د حکومت چلند څه ډول دی ؟

**ځواب :**

که چیری د پو ښتو- نکو هدف آزاد قبایل وی پا- کستان ځانته حق ور کوی‌چی دهغوی په برخلیك کی په مستقیمه تو گه او له پلمی پر ته لاسو هنه و کړی پدی صورت کی د آزاد و قبا یلو سره د پاکستا ن د دو لت چلند منفی او له دښمنی‌څخه ډك څیرل کیږی . که څه هم تل آزاد و قبا یلو ته ډاډور- کړل شوی دی چی هغوی کو لای شی له بر تانیی اوپا- کستان پر ته خپل خودمختار آزاد نظام ته دوام ور کړی او اداره یی کړی .خو پاکستان د آزادو قبایلو په چارو کی په ظالمانه او جابرا نه تو گه لاسو هنه کوی . موږ دآزادو قبایلو په چارو کی دپاکستا ن دهمیشنیو لاسو هنو شا هدیو او پدی و رو ستیو وختو کی تاسو او ټو ل ددی شا هد یاست چی پاکستا نیانو په خیبر ایجنسی کی پر اپریدو او شینوارو باندی د هغوی د خود مختاری له حق سره‌سره چی په دو دیزه تو گه یی‌په تاریخ کی در لود او ثابته ده دغی ایجنسی ته یی لاس ور و غزاو ه . او بد خو یی یی لا دا -بی خپلی د ی مدا خلی ته یی اخلاقی او بشردوستانه علتو نه او بهانی جوړی کړی یعنی ویلی یی دی چی دلته هیرو ئین جوړیدل . دلته قمار خانی دی او ... دلته داسی دی او ها غسی دی . دغه نا روا او ظالما نه پرو- پا گند و نه دی ځکه که دلته دا فرض کړو چی هیرو ئین جو ړیږی نو دغه هیروئین باید دپاکستا ن دبند رونو او سر کو نو څخه د پاکستا ن د پانگوا لو او قاچاق وړونکو له خوا والیږدول شی په داسی حال کی چی تاسو پو هیږی چی د آزادی‌په خا طر د پښتنو دغه مبارزه ننني نه ده، تاز ه نه ده چی بهانه ور ته و تراشی . له کلونو کلونو راهیسی آزادو قبایلودهرهغه جابر اوظالم په خلاف چی په سیمه کی یی‌سر را پور ته کړی او غو ښتی یی دی چی هغوی په پړو او زنځیرو نو و تړی ، په میړانه مبارزه کړی او ځواب یی ور کړی دی ، نو ځکه د آزادو قبایلو په خلاف د پاکستا ن دغه له دښمنی نه ډ ك غیر انسانی چلند په سیمه کی دا منیت او سو له ییز ژوندپه تا وا ن ارزیا بی کوم .

**پوښتنه :**

د سر حد و نو په پوښلو سره د سر حدی کو- چنی تجار ت مسا له له مخا- لفت سره نه مخا مخ کیږی او نه پری کیږی ؟

**ځواب :**

که منظور د آزادو قبایلو او دافغانستا ن د خلکو ا ودافغا نستان د ننه قبا یلو ترمنځ سر حدی تجار ت او راکړه ور کړه وی نو په دی صور ت کی د پوښتو نکی پاملر نه دملگری ببرك کارمل‌دی خبری ته راگر ځوم چی ویلی یی دی ، هغه وخت په دی‌باب خبری کوم چی سر حدو نه پو ښنل او ساتل کیږی ،په‌دی معنی نه ده چی دا سر حدونه د قبایلی دوستا نو په مخ تړل کیږی ، نه ، بلکی ددښمنا نو په مخ تړل کیږی ، ددوستا نو پرمخ به تل خلاص وی .

دښمنا ن هغه څوك دی چی دافغانستان په‌خاو ره کی لاسو هنه کو ی او دثور انقلاب او دافغانستا ن دآزادی خپلو اکی ، شر ف اودځمکی د تما میت په خلاف جنگیږی یعنی دغه سر حدو نه د بانډ- یتانو پرمخ ، د هغو وسلو دکار وانو نو پر مخ چی دثور انقلاب خلاف داستعمال‌له - پاره را لیږل کیږی او دجا- سو سانو د هغو ډلو او لښکرو پرمخ چی له واشنگټن څخه نیو لی تر لو یدیځی اروپا او له هغه ځایه تر پاکستا ن اوایرا نه پوری‌سره یو کیږی او زموږ هیواد ته رااستول کیږی ، تړل کیږی . دغه سر حدو نه هیڅکله‌دهغو ورو نو پرمخ چی دی خوا او هغی خوا ژوند کو ی او له موږ سره د وینی ، تاریخی او دو دیزی ا ړیکی لری نه تړل کیږی .

**پوښتنه :**

دغه راز د افغان تر کانی به کالکتیف کی هم دا پو ښتنه طرح شوی چی ولی تر انقلاب پخوا دا سی جرگی نه جوړیدی ؟

**ځواب :**

له انقلا ب څخه دمخه د سلطنت په وخت کی دلته له فیو ډا لی دو لت او فیو ډا لی تسلط سره یو ځای یو مونارشی دو لت و جود در لود ، چی یوه سړی دټو لو خلکو پر ارادی باندی حکم چلو لو. او هغه نظام د یوه شمیر ستمگرانو په سر کی په در بار پوری مربوط د یو شمیر ارستو کرا تانو گټمی یی تا مینو لی . چی په طبیعی توگه د هغو گټو دخلکو له‌گټو سره توافق نه‌کاو ه .

دجرگو د سیستم دفعالو لو او هغه ته دټو جه کو لو معنا داده چی په ټو لنه کی د مو - کراتیك فعا لیت تا مین کړی او د خلکو اداری ته تبا رز ور کړی .

نو له دی امله‌گټو یی‌ایجاب نه کاوه ، نو دخلکو ترمنځ جرگه ییز فعا لیت ته یی داجاز ی ور کو لو او دساز- مان ور کو لو د هغو لو دپلو یتو ب زمینه هم نه برابرو له .

**پوښتنه :**

بیا هم د کا بل پو لی تخنیك په انستیتو ت کی داپو ښتنه طر حه شوی چی ایاله سرحدڅخه آخوا قو- مو نو او قبایلو ترمنځ‌متشکله سیا سی ځواك شته او په هغه صور ت کی چی‌وجود لری ، دو لت و لی د هغو له استازو سره خبری نه کوی ؟

**ځواب :**

دا یو ه پیچلی او گو نگه پو ښتنه ده . که دپو- ښتنی کوو نکی مطلب له متشکله ځوا ك څخه د یوه دو لت و جود و ی ، طبیعی‌ده چی په آزادو قبایلو کی د هغه د ځانگړی مو قعیت له کبله حالت داسی د ی چی د غه قبایل له قضا یی، اجرا - ئیوی او مقننه قوی څخه متشکله دیوه دو لت امکان نه در لود ، خو قبایل دخودگر- دانی د سیستم د رلو دو نکی دی چی په هغی وسیلی سره د ستمگر و ځوا کو نو په وړاندی چی هغوی یی تل له جنو ب اوختیځ خوا تر گواښ لاندی نیو لی دی له ځان‌څخه دفاع کړی ده ، دا ډول یو سیستم و جود لری .

دقبایلو په‌جرگه‌کی ملگری ببرك کارمل پخپلی وینا کی د قبایلو دخود اداره گی سیستم دخود گردا نی په سیستم یا د کړ او د - ا.خ.د. گ دمرکز ی کمیټی‌په شپاږ سم پلینوم کی د خود- گردانی دغه مفهوم یی په خود اختیا ری مطرح کړ چی دهغو هد ف له دی څخه د قبایلو دو دیزه خودمختاری ده چی بنسټ یی قبایلی جر گی تشکیلو ی او پخپله د قبایلو د منتخبو مشرانو او رئیسانو له خوا اداره او کنترو لیږی او کلکتیفی او و گړ نیز خصو صیت لری.

طبیعی ده‌چی دافغانستا ن دو لت په دی سیستم سره د قبایلو له لو یانو رو حانیونو او د هغو له مشرانو اومخورو سره نږدی تفا هم لری ، په دی رابطه کی تفا هم له پلرو نو ، نیکونو او له‌لر - غونی تاریخ څخه دافغا نستان لپاره پا تی دی او پر دغه اساس دی چی تل ددواړو خواو په خیر او شر کی بی علاقی پا تی شوی ندی .

**پوښتنه :**

په بنا یی سا - ختمانی دستگاه کی هم یوه پو ښتنه مطرح شوه چی د پاکستان د دو لت له مخنیو ی سره سره د پښتنو قومونو او‌قبایلو و لی دقبایلو په جرگه کی گډو ن وکړ ؟

**ځواب :**

پو ښتنه آسا نه ده پخپله خپل ځواب‌ور کوی. د قبایلو د عمل آزادی او دا چی څنگه تصمیم نیسی دپا- کستان له وا که و تلی ده . که چیر ی پاکستا ن وغواړی له افغا نستا ن سره دقبایلو اړیکی گډی و ډی کړی نشی کو لای ،ځکه تل زمو ږترمنځ کلك او ورور گلویز پیو ند وجود لری . زه باور لرم‌زموږ دټو لنی رو ښا نفکرا ن زموږ خلك دافغانانو داستعمار ی ضد غور ځنگ پر تاریخ پو- پوهیږی . لری نه ځو داستقلال په همدی‌جگړه کی دوزیر ستا ن مربو ط له‌آزادو قبایلو څخه یوا زی دوزیرو قبیلی دیرش زره تنه وسله- وال کسان دوخت د شا هی سلطنت تر څنگ داما ن الله خان تر څنگ داستقلال او آزادی د تا مینو لو لپاره‌دبر- یتانیا په استعماری ضد مبار زه کی چمتو شول .داهغه خبره ده چی پخپله خپل ځواب وایی له آزادو قبایلو سره دافغانستان اړیکی ددو لتو نو ترمنځ ددو دیز و ا ړیکو له حد څخه ډیری زوری اوډیری ژیشی لرونکی او ډیری‌طبیعی دی .

**پوښتنه :**

داوبو لگولو او اوبو دزیرمو په وزارت کی‌یوه بله پوښتنه طرحه شوه .

آیا افغان ښځو ته د قبایلو په جر گه کی دپو لو دپوښنلو په برخه کی دنده ور کړ شویده ؟

**ځواب :**

طبیعی ده . دنده ور کړ شویده خو په مشخص ډو ل د ښځو په نو م دپو لو د پو ښلو او ساتلو په برخه کی کومه دنده نده ټا کل‌شوی او په کوم پرو گرام کی تر لاس لاندی نده . خو تا سو پوهیږی چی په ا.د. ج کی ښځی اونارینه برابر حقو ق لری کله چی د برابرو حقوقو خاوندا ن دی په طبیعی ډو ل برابری و جیبی اوندی هم لری . او پدی اساس‌ضروری نده چی د هیواد او یا دپو لو د ساتنی لپاره د ښځی اونا- رینه‌په‌نوم کومه‌دنده بیله‌شی. همدا اوس تا سو عملا گوری چی‌په‌ځانگړی میدان شینوارو دخوست په نورو سیمو او په یو شمیر سر حدی و لایتو نو کی ښځو دپو لو په ساتلو او پوښلو کی برا خه برخه اخیستی ان زه تاسو ته په ډا گه او باور و یلای شم هغه با توری او اتلوا لی چی‌افغان ښځو د ثور انقلاب په دوران کی ښودلی ان زمو ږ په لر غونی تاریخ کی چی تل د ښځو دباتو ری له دود سره ملگری دی ساری نه لری . دانقلاب په غور ځنگ کی دمیرمن فیروزی ، سنځلی او داسی نورو ډیر مثا لو نه‌لرو دغه شمیر ز یات دی . زه‌فکر کوم اوس مثال ته اړه نه لیدل کیږی ددی لپاره چی د هیواد په دفاع کی د ښځو غورځنگ پراخ شوی او بی سا ری شویدی او دافغانستا ن ددود له مخی دی . او ټول پری‌پو- هیږی .

په همدی کو لکتیف کی یوه بله پوښتنه و شوه چی دقبا- یلو عا لی جر گه د دو لت په غو ښتنه جوړه شوه او که د قبایلو په غوښتنه ؟

**ځواب :**

طبیعی ده دا.د.ج چی‌دا. خ.د. گ له خوا رهبری کیږی تل جر گی او ستری ملی غونډی په دو دیزه تو گه هغه وخت جوړ وی چی دخلکو د پر گنو بالقو ه اراده پدغه استقا مت کی تر لاسه کړی دغه جرگی له هغو ځنی د قبایلو عا لی جر گه دا.د. ج دانقلا بی شورا له خوا راوبلل شوه او د خلکو اراده، هیله او غوښتنه چی د سازما نونو، دو لتی اور گا نونو له خوا و خپرل شوه ، له همدی امله وه چی دا سی پر تمینه جرگه باید جوړه شی .

همدارنگه د کابل په ښاری څارندو ی کی دغه پو ښتنه طر حه شوه چی د قبایلو د عا لی جر گی‌مرکزی شورا کومی دندی لری آ یا شورا دا یمی ده که مو قتی؟

**ځواب :**

تا سو پر دی مو - ضوع پو هیږی چی پخپله قبیله یوه تاریخی پدیده ده او داقتصادی ټو لنیزو ځا - نگړ و شرایطو محصو ل ده. همیشنی او تل تر تله نه ده نو په قبیله پوری اړوند هر ساز ما ن به د قبایلو د عا لی جرگی او د هغی د مرکزی شورا په گډو ن ترهغه وخته دوام وکړی چی قبا یل وجود و لری . ټو لنیز اقتصادی او قبیلو ی ا ړیکی مو جودی وی کله چی وایو ددغو ټو لنیزو اقتصادی اړیکو په وخت کی به وده و کړی او قبایل به په هغه بڼه چی نن دی نه وی هغه وخت به ددغی شورا شته وا لی ته هم ضرور ت نه و ی . خو باید پوه شو چی دا یوه او ږده پرو سه ده دا دیو ی ور ځی یوه کال لسو کلو نو او ان دشلو کلو نو کار نه دی .

په هر حال د قبایلو د عالی جرگی مرکز ی شورا چی د عا لی جرگی په غیاب کی به فعالیت و کړی خپلی دندی به د پلار و طنی ملی جبهی په اړانه کی دیو ه ډله ییز غړی په تو گه سر ته ورسو ی او ددغو دندو په سر ته رسو لو کی به یی خصوصیت دا وی څرنگه چی د قبایلو د عا لی جر گی شورا ده لکه‌چی له نا مه یی‌څرگنده‌ده د قبایلو هیلی او ارما نو نه به څر گند کړی او په عین‌حال کی به په قبایلو کی دافغا - نستان د خلکو فعالیتو نه دافغانستان دنورو و رونو ملیتونو ، قومونو او قبایلو له فعالیتو نو سره یو ځا ی برابر کړی .






**زموږگران لوستونکی خبردی چی د ۱۳٦٤دمیزان په ۲٤ نیټه سیاسی‌واحده ورځ «دقبایلو دعالی جرگی‌پریکړی په عمل‌کی» تر. شعارلاندی په‌ټول‌هیواد کی جوړه شوه. پدغه ورځ کی‌دزیار کښانوله خوا پوښتنی وړاندی‌شویدی، دا.خ.د.گ، د مرکزی کمیټی‌دپریکړی لمعنی‌گوندی‌اودولتی‌مسوولین‌دزیار - کښانوپوښتنوته ځواب‌ورکوی‌پدغه‌گڼه کی دا.خ.د.گ، دمرکزی‌کمیټی‌دسیاسی بیرودعلی البدل غړی، دقومونواوقبایلو دچاروو‌زیرملگری سلیمان‌لایق‌دتاریخی لویی جرگی اودقبایلو دعالی‌جرگی د پریکړواواقداماتوپه برخه کی‌ځینو پوښتنوته چی په تعلیمی موسسواو کارگری کلکتیفونوکی مطرح‌شوی‌دی ، ځواب وایی .**

# بهرنی خبرونه، واقعیتونه، پیښی

# په پاکستان کې نوی خندنی لوبی

## د پوځی حکومت د «لغوی» اعلام

جنرال ضیاء ددواړو مجلسونو په‌یوه گډه‌غونډه‌کی‌لاوړمه‌ورځ د پا کستان په تاریخ کـی د ډیر اوږده پوځی حکومت لغوه کول اعلام کړل.

دتاس آژانس درپوټ‌له‌مخی اوس دپاکستان د ۱۹۷۳ کال اساسی قانون دجنرال ضیاء درژیم لخوا‌په وارد شویـو تعدیلاتواوبدلونونوسره بیا نافذشوی اووایی چی پو ځی محکمی‌له‌مینځه تللی او ملکی محکمویی ځای نیولی دی .

خوجنرال ضیاء الحق د پاکستان د جمهوری ریاست دوظیفی ترڅنگ د ځمکنیـو ځواکونو دلوی درستیز ځوکی پخپل‌واک کی‌ساتلی‌اوداردوبشپړ کنټرول دځان لپاره ساتلی‌دی.

سیمه‌ییزوکتونکو د پو ځی حکومت لغوه‌کول چی اته‌کاله په پاکستان‌کی واکمن ودیوی ننداری په‌توگه بللی دی.

کتونکوڅرگنده‌کړیده چی دغه ننداره دواشنگټن په‌لار ـ ښوونه‌مینځ ته راغلی ده .

واشنگټن عقیده لری‌چی له همدی لاری‌کولی شی افغانی انقلاب ضد عناصروته خپلی مرستی زیاتی کړی اود افغا ـ نستان ددموکراتیک‌جمهوریت پرخلاف نااعلام شوی جگړه سخته کړی . باختر

## دمنځنیو پیړیو واکمنی

د پاکستان د پو ځی‌واکمن ضیاء الحق په رژیم کی پـه عام محضر کی دره وهل او نوری غیر انسانی سزاوی د دولت د جاری سیا ست د قوا نینو په نورم اوښتی دی. دره وهل ان په ژورنالیستانو چی په هغه هیواد کی د دمو ـ کراسی د اعادی په غور ځنگ کی گډون لری تطبیقیږی .

په پاکستان کـی د ۱۹۷۷ کال د جون له کودتا له پیل څخه تر اوسه پوری پو ځـی حکو مت او اضطراری حا لت نا فذ دی ، سیا سی‌فعالیتونه منع او د دولت په سلگونـو زره مخا لفین نیول شوی‌او زندانی شو یدی .

د بشر. د حقو قو دنړیوال فد را سیون په ر پوټ کـی یادو نه شو یده چـــی : د پا کستان اوسیدونکی چی په هر وخت او هر ځای کی نیول شو یدی په پو ځـــی محکمه کی محا کمه شوی او لدی پر ته چی و پو هیږی‌څه گناه لری په سزا محکوم‌کیږی یوازی په ۱۹۸۳ کال کی کله چی پو لیسو او امنیتـــی ځواکونو پر مظا هره‌کوو نکو ډزی وکړی د مظا هرو څـــه دپا سه سل تنه مظا هـــره کوونکی ووژل شول .

**دبین المللی مسایلوځانگه**

# دمبارزی او امیدونو کال

## د ۱۹۸۵ کال دغوره پیښو کرونولوژی

دنړی ټول بشر یت او خلک دتیر کال پیښی دانسا نـــی فعالیتونو په ټولو سا حویعنی سیاسی ، ټولنیز ،اقتصاد ی او کلتوری بر خوکی ترڅیړنی لاندی‌نیسی.

نن ورځ د ټـول بشر یت روحیات دامریکا د متحده‌ایا ـ لاتو دامپریا لیزم دلا نجمن اونظا میگرانه تگلاری په‌نتیجه کی د هستوی جگړی خطر ته چی تر بل هرو خت نه زیات یی بشر یت او بشری‌مد نیت ترگواښ لا ندی نیو لی‌پاملرنه لری، همدا راز هغوی دوسله والو سیا لیو دلوړ یدو او کیهان ته د هغه دراکښنو دلو اودلا نجمنو سیمو درا منځ‌ته کولو چی د هغه اساسی‌عامل پدغو سیمو کی دامریکادامپر ـ یالیزم دلاس‌و هنی سیاست دی‌په‌اندیښنه اوویره‌کی گوری.

شو روی اتحاد له‌بین‌المللی حالا تو اودنړ یوا لودانسا نی غو ښتنو او انعکاسا تو پـــه مسوو لانه درک دلنیینی‌سو له غوښتو نکی او پیاوړی تگلاری په‌تعقیب سره تل هڅه کوی، چی دنړ یوا لی سو لی‌دساتنی او تا مین، دو سله وا لـــو بی سره لوبردبندو لواوښکیل کولو اود بین المللی اړ یکـــو دښه وا لی، له‌نابودی څخه د بشر یت دژ غور نی او لـــه هستوی جگړی څخه د. بشری تمدن دسا تنی په خا طر هغه څه چی په‌توان کی دی سر ته رسولی دی.

دشو روی اتحاد اوامریکا دمشرانو تر منځ لیدنه د تیر کال دسترو پیښو څخه و ه چی‌دټولی نړی سو له دو ستو خلکو هیلو ته یی نـــوی امیدو نه‌ور و بخښل خـــو دامریکا دمتحده ایا لا تـــو دکبر جنو او کر غیړ نـــو هلو ځلو سره دریگن د ما جرا غوښتو نکی ادار ی په‌وجود کی دنړ یوا لو ،داراد ی پر خلاف و سله والو لوبو ، په اصطلاح دستـــــو ر و د جگړی دسترا تیژ یکی دفاع دطر حی پروگرام ته نوی‌اړ ـ خو نه ورکړ ل او هغه ته یی دخپلو ناتویی پلو یا نـــو پښه هم راکښود له دغه عمل ددغه وا قعیت ښکار ندو ی‌دی چی دامریکا دمتحده ایا لا تو امپریا لیزم نه‌یواز ی وسله ـ والی لوبی نه کموی بلکی هغه لاسختوی.

له‌بلی خواهم دتیر کال‌په اوږدو کی نړیوال دنړی دبیلابیلـو هیوادنو پرضد دنااعلام شویو جگړی ددوام او سختوالی شا ـ هدوو ،دغه جگړی چی دهغـه اصلی نوښتگر دامریکا دمتحده ایالاتو امپریا لیزم دی دنـړی ټول حالات یی زیات وخامت ته را کښودلی او ددغو ستو نزو په حل کی یی سخت خنډونه رامنځته کړیدی .

موږ په لاندی توگه ددغـو نړیوالو پیښو ځینی‌برخـــی ځرگند وو :

**دپنځوسو زرو انسانا نـو وژ نه:**

دنیکاراگوا پر ضد د نا ـ اعلان شوی جگړی په دوام‌کی دامریکا دمتحده ایا لا تو په ملاتړ اودسی.آی.ای ددوزخی سازما ن په مستقیم گډو ن سره دنیکارا گوا دانقلا ب ضد بانډو نو له ۱۹۸۰ کا ل څخه را پدی خوا څه نا څـــه پنځوس زره وگړ ی پـــه نیکا را گوا کی‌وژلی دی .

**دپوځی موا فقه لیکو نو له منځه‌وړل:**

دیونان دو لت په رسمـی تو گه دیونا ن په خاوره کی‌د امریکا یی پوځیانو دوضعیت په اړو ند(۹۰) موا فقه‌لیکو نه لغوه کړل دهغه تصمیم له‌مخی چی دیو نا ن دو لت‌و نیو. په یو نان کی دامریکا د متحـــده ایالاتو دپوځی اډو په‌بر خه‌کی گمرکی مقررا ت ترسره شول دغه اډ ی په‌یونان کی دمخدره موادو او قاچا قی مالو نو د راوړ نی په مر کزو نو بد ل شوی وو.

**سخت گواښ :**

له هغه‌و خته را هیسی‌چی دامریکا متحده ایا لاتـــو او جاپان ترمنځ امنیتی تړو ن لاسلیک شوی د جاپا ن پـــه خاوره کی دامر یکا یـــی عسکرو له خوا څه دپا سـه یوملو اویازره جنا یتو نـــه شو یدی.
په همدی موده کی دامریکایی عسکرو له خوا یو زرو دو ه سوه دری تنه جاپانیا نو ژل شو یدی . په‌جاپان کـــی دامریکا دپوځی ځوا کو نوپرله پسی پوځی ما نور ي او لـــه او سیدو نکو څخه دډ کـــو سیمو دپاسه دامر یکا یـــی الوتکو الوتنو د ملیو نو نـــو جاپانی وگړو ژو ند اوروغتیا تر گواښ لا ندی راو ستی‌ده دغه امنیتی تړون یواز ی د امریکا دامنیت په‌بر خه کـی عملی کیږ ی نه دجا پـــان په‌برخه کی .

**ستر بریا لیتوب:**

دپنځه اتیایم کال دجو لا ی په میاشت کی دهند صدر ـ اعظم راجیو گاندی او دسکهـ داکالی دال دگو ند رئیـــس هر چند سنگهـ لا نگـوال‌تر ـ منځ د پنجاب د مسئلی دحـل په‌برخه کی یو یاد ښت لاسـ لیك شو .

ددغه مهم سند هــد ف د هغو او ږدو اختلا فو نـــو پای ته‌رسول وو چی دهندد ځمکی بشپړ تیا او ملی‌واکمنی یی ترگواښ لا ندی نیو لـــی وه. دسکهـ افرا طی ډ لو پدی ورو ستیو کلو نو کی دبهرنیو ځواکو نو په ملا تړ هڅـــه کړ ی چی په هندکی پـــه اصطلاح دخالصتا ن دخپلواك دولت د جوړو لو له پار ه د بیلتون غوښتنی و لو لـــی را منځته‌کړی.

د هند دکمو نست گو ند په‌گډو ن سیا سی بیلا بیلـو گو ندو نو ته منسوب‌دپارلمان څه دپاسه پنځو سو غړ وله دغه موا فقه لیك څخـــه‌د بهر نیو اود کور نیو ارتجاعی ځواکو نو دتوطیو پـه‌و راندی چی په هندکی دحالا تودگډ ـ وډولو له‌پاره هلی ځلی کوی، دد مو کرا تیکو ځواکونو دیوه ستربری په توگه هرکلی وکړ.

**دنیوزیلند پر ضد گواښ:**

دنیو زیلند صدر اعظم دیوید لانگی د هغه هیـــواد بندرو نو ته دمتحدو ایا لاتو داتو می بیړ ی درسید لـــو دمنع کو لو له‌تصمیم نه‌دډډی کولو له‌پاره دنیوز یلنـــد دمجبورو لو په‌لاره کـــی دواشنگټن هلی ځلی شنډ ی کړ ی . دنیوز یلند داصو لی دریځ په‌وړاند ی دریگن‌اداری دهغه هیواد پر ضد پراخـــی توطیی پیل کړ یدی .

**طبیعی پیښی :**

په ۱۹۸۵ کال کی‌د نړ ی په ځینو هیوادو نو کی طبیعی مهمی پیښی شو یدی چی ستر ناتارونه را منځ ته شو ی یوه یی په نیو مکسیکو کـــی دسپتمبر په نولسمه اوشلمه ور ځو کی دزلز لی سخـــت ټکانو نه و شول چی له زرو څخه زیاتی ودانی بیخـــی ړنگی شوی . په دغی ناو ړ ه پیښه کی له دری زره او شپږ سوو تنو څخه زیات مړه اوله شپږ سوه‌تنو څخه ز یـــا ت سخت ټپیا ن شول . پـــه کو لمبیا کی دنیو دود لـزویز داوړ غور ځوو نکو غرو نوله فعالیت نه راپیدا شوی بله تراژ یدی وه چی داور غور ـ ځو ونکی دفورا ن په‌لومړ ی پړاو کی دوه ویشت زره او دری سوه تنو خپل ځان لـه لاسه ورکړ ی او لر ترلر ه دری زره تنه ټپیان شو ی‌وو. شل زره تنه بی کوره شول، اود غه راز دیو کو تا ښارته نژ دی دجاپان دهوا یی کرښی اوه سوه اوه ځلیو ښتــــت بوینگ جمبو جټ الو تکـــی دغورز یدو له امله د هغـــی پنځه سوه ځلیرو یشــــت تنه سپر لی تلف شوی ا و یواز ی ځلور تنه په‌حیرانوو ـ نکی توگه ژو ندی پا تـــی شوی وو .

**په‌سو ډان کی پو ځـــی کودتا:**

دسو ډان و سله وا لـــو قواوو په هغه هیواد کـــی‌د سیاسی حالا تو دخرا بی له امله دجنرال عبد الر حمـــن صور الذ هاب پـــه مشری قدر ت په‌لاس کی واخیســـت دسو ډا ن پخوا نی رئیـــس جعفر النمیری ،دده کابینـــی مرستیالا ن او وزیرا ن یی‌له خپلو دندو لیری کړل.

**دځوانانو دوو لسم نړیوال جشنگوتی:**

دمسکو ښار دځوانا نـــو او محصلا نو د دو لســـم نړیوال جشنگو ټی میلمه‌پالو پدغه جشنگو ټی کی له سلو زرو څخه زیاتو میلمـــه‌او نندار چی استازو دسو لی ، دوستی او امپریا لیستی ضد پیو ستو ن تر شعار لا ندی را ټول شو ل.

دشو روی اتحاد دکمو نیست گوند دمر کزی کمیټی عمومی منشی ملگری گربا چف ددغه فستیوال میلمنو ته‌په خطا ب کی دوینا‌په تر څ کی‌نړیوا لو ته اعلام کړه چی شو رو ی ـ اتحاد ځپلی یو لی اتو مـی چاودنی دروان کال داگست‌له شپږ می نیټی نه ځنډو ی . دغه مهلت د۱۹۸٦ کـــا ل د جنوری تر لو مړی نیټـــی دوام در لود، خو که دامریکا متحده ایالات په بالمثله عمل لاس پوری کړ ی کیدای شی دغه مهلت دغه راز دوام وکړی.

**پر فاشیزم دبری ځلوېښتمه کالیزه:**

دملگرو ملتو دساز ما نـد تصویب په اساس په۱۹۸۵ ـ کال کی دهیټلری فاشیز م‌په هیولا اود جاپان په‌ملیتا ریزم دبری ځلو یښتمه کالیز ه په نړ یواله سطحه ونمانځله‌شوه.

دشوروی اتحاد مشرا نوپه دغه مناسبت دټو لوهیوادونو خلکو، پار لمانو نو او حکو ـ متو نو ته په خطاب کی‌بشپړ متن صادر او خپور کړ ،چی په هغه کی دسو لی، جوړوو ـ نکو خبرو او په‌نړ یوا لـــی سو لی پور ی دټو لواړو ندو موضو عاتو دسو له پیــز حل له‌پاره دشو روی اتحا د په را مخته کیدنه ټینگاروشو دغه راز دختیځی اروپا سو ـ سیالیستی هیوادو نود ملگرو ملتو په‌ساز ما ن کی گـــډه بلنه خپره کړه چی د هغی‌له مخی د ملگرو ملتو له غـــړو څخه غوښتنه و شوه چـــی‌د سو لی دساتنی او ټینگښـــت اودیوی نړیوا لی جگړ ی‌د لـــه منځه و ړ لو او په‌بین المللی اړیکو کی ددیتانت د ژ وندی کولو له پاره زیاارو باسی .

**دو لتی تروریزم :**

اسرا ئیلی الوتکو داکتوبر په‌لومړی نیټه په غلچکی ډول دتو نس دمر کز په جنو ب کی دفلسطین دآزادی بښنو نکـــی سازما ن مر کزو نه چی‌د هغه هیواد له‌پولو څخه په زرگونو کیلو متره‌واټن‌لری بمباری‌کړل.

دملگرو ملتو دساز ما نـد امنیت شورا په ځوار لسو رایوسره پریکړه لیك تصویب کړ اود غه تیری یی دملگر و ملتو له منشور، بین المللـــی قانون او بین المللی معیارونو څخه ځرگنده سر غړ و نه بللی او هغه یی غندلی ده .یوازی امریکا دغه‌پریکړه لیك ته له رایی‌ور کولو څخه ډډه وکړه

دغه راز دامریکا یی سلا ـ کارانو په ملا تړ د مصر ی کوما ندو گانو له خوا دهغو عملیاتو په نتیجه کی چـــی‌د مالتا دمرکز والتیا په هوا یی ډگر کی دمصر د هوا یـــی کرښی په اووه سوه‌اووه‌دیرش بویینگ الوتکی چی دنامعلو مو کسانو له خوا تښتول شوی وه تر سره شول شپیته تنـــه بیگناه مسافرین چی‌ماشومان او ښځی پکی وی‌له منځه لاړل.

**په‌ژنیو کی خبری :**

دشوروی اتحاد دکمونیست گوند دمر کزی کمیټی‌دعمومی منشی میخاییل گربا چـــف اود امریکا د متحدو ایا لاتـــو جمهور رئیس رونالد ریگـــن ترمنځ دمتقا بل توا فق له مخی د۱۹۸۵ کال دنوا مبر لـــه نو لسمی نیټی څخه تـــــر یوویشتمی نیټی پوری خبر ی او لیدنی و شوی . د خبرو په پای کی دشوروی اتحاد او د امریکا دمتحده ایا لا تو گډ ه اعلا میه دځینو ټاکلو مسایلو په‌باره کی خپره شوه .ددواړو هیوادو نو مشرانو ځرگنده کړه چی په اټو می جگړه کی‌به هیڅوك وړو نکی نه‌وی ا و باید هیڅکله را منځته نه شی. پدغو ځبرو کی دغه راز د شوروی اتحاد اود امریکا د متحده ایالا تو داړ یکو پـــه باره کی تصمیم و نیول شو .

# دنوی ماسک ترشا

جنرال ضیاء الحق له اتـــو کلو نو وروسته یو ځل بیا د پوځی مقرراتو د «لغوه» کولـو په اعلام سره ،، دسپینی ماڼی په دستور یوه نو ی سیاسی ننداره په پاکستان کی پیل کړه .دغه سیاسی لو به ، د جنرال ضیاء حکو مت تـــه دبرائت ور کو لو په خاطرچی دخپلی اته ‌کلنی وا کمنی په جریان کی یی د پاکستان‌پر خلکو ظلمو نه او جنا یتو نه کړی دی ، له مسوو لیت او محکمی څخه د پوځی رژیـم دژغور لو لپاره طر حه شوی ده جنرال ضیاء په پاکستان کی دپوځی مقررا تو د «لغوه» کولوله سیاسی مانور څخه‌په استفادی چی له ډیری مـو دی پخوا پیل شو ی و، بریالی شو چی په پای کی نو ی‌لایحه چی په هغی کی د سیاسی ـ گو ند ونو لپاره یو لړ مقررات وضع شو ی دهغه هیواد په پار لما ن کی تصویب کړه.

په پاکستان کی‌د پو ځـــی مقرراتو د «لغوی» مانور، دد ـ مو کرا سی دا عا دی غور ـ ځنگ چی داسلام آباد در ـ هبرانو په ادعا .به پاکستان کی دبیلا بیلو گو ندو نولپاره دسیاسی فعا لیتو نو لاره پرا نیزی، په دی هیواد کـــی‌د سیا سی آزاد یو د مر گ‌په تو گه گڼلی دی .

دضیاء الحق سیا ســـی لوبی ، په پا کستان او سیمی کی دملی او دمو کرا تیکـــو غور ځنگو نو پر خلاف‌داسلام آباد دحکو مت د ټکو ونکی سیاست دعمل په لاره کی لازمی آسا نتیاو ی برابر ی کړی ، او سنی رژیم خوا ـ کمن‌کوی چی د گو ندو نو او دو لتی ضد ځوا کو نو د هر ډول سیاسی فعالیتونومخنیوی

**پر خبرباندی یادښت**

وکړی دانقلاب ضد باندو نو اود ا.د. ج پر خلاف دنـــا اعلام شوی جنگك پلو یتو ب ته پرا ختیا ور کړی .

په پاکستان کی دپو ځی‌مقر ـ راتو د «لغوی» خند نی لو به، نه یواز ی ددغه هیواد دخلکو په ژو ند کی مثبت اوجوړ ـ وونکی بدلو نونه نه راو ړی، بلکی د اوسنی رژیم پر ضدد پاکستان دخلکو کر که له‌پخوا څخه لازیاته لمسو ی .

دبین المللی مطبو عا تو د انستیتو ت درپو ټ له مخی‌د ۱۹۸۵ کال له مار چ څخه تر اگست پوری ، د ضیاء الحق درژیم ضد څه‌دپاسه ٦۰مجلی او خپرونی مصا دره شو ی‌او ددغه هیواد د ډله ییزو اطلا ـ عا تو وسایلو په لسو نو تنه کار مندان چی د ضیاء الحق دحکومت سیا ست یی په‌دننه او بهر کی غندلو، له خپلـو دندوڅخه لری‌کړای شوی‌دی. داسلام‌آباد رهبرانوپه‌پاکستان کی ددولتی ضد مظاهـرو او میټنگو نو د ټکو لو په خاطر کلك امنیتی اقدا مو نه تـر لاس لاندی نیو لی ، په دی هیواد کی دنوو بند یخا نود جوړولو کار ته دوام ورکوی. همدا رنگه داسلام آبادرهبر ـ ان په پاکستان کی د زورزیا ـ تی او زیندی کولو دد ستگاه دلازیا ت ټینگښت لپاره هوډ من‌دی چی د پو لیسو نو ی اداره چی له لسو زرو غـړو څخه جوړه شوی وی ،نو ی رامنځته کړی .

په واقعیت کی ، په پاکستان کی‌دمترقی اودموکراتیکو ځوا ـ کونو یووالی اوگډعمل دجنرال ضیاء حکومت‌دیته‌اړ کړیدی‌چی په‌زیات‌سختوالی اوبدحالت‌سره دمخا لفو ځواکو نوله‌هغی‌جملی څخه ددموکراسی‌داعادی غور ـ ځنگ زیات ټکو ل چی پـــه پاکستان کی داو سنی ر ژیم له پیا وړو مخا لفینو څخه‌دی عمل وکړی .

داسلام آباد دحاکم ر ژیم غچ اخیستو نکی عملو نه چی په‌پاکستان‌اوسیمه‌کی‌دامریکادا ـ مپر یا لیزم د ملاتړ اوښتی دی ،دپاکستان دخلکو دهیواد پالنی او آزادی‌غوښتنی ولوله یی راپار و لی ، په پاکستان کی یی ددمو کرا سی دبیرته ټینگولو د غور ځنگ پرشاو خوا دټو لو متر قی اودمو ـ کراتیکو ځوا کو نو یو والی اویوموټی والی لازیات‌کړ یدی.

په پاکستان کی دپو ځـی مقرراتو د «له منځه وړ لـو» خند نی ننداره یو تیرایستو ـ نکی اقدام او داسلام آباد د مشرانو بر بی ځایه عملو نو باندی دیو ی سیاسی نو ی پردی غو ړو ل دی چی پـه پا کستان کی داساسی قانون په اړو لو سره‌یی په‌هغه‌هیواد کی په دمو کرا تیکو آزاد یو او حقوقو پښه ایښی اودسیا ـ سی قدر ت دساتلو لپاره یی، دمخا لفو گو ندو نو مشران او پیا وړی شخصیتو نه یا تجر ید کړی او یایی بندیان کړ یدی .

دپو ځی حکومت‌نو ی‌سیا ـ سی ننداره او په اسلام آباد کی دپو ځی وا کمنود قدر ت ساتنه د ټگی بر ه گی یـوه پرده ده چی جنرال ضیاء به دی نامه په پاکستان او سیمه کی دامپـ یا لیزم‌د ناو لـــو هدفونو دتر لاسه کو لولپاره لاره ،، ډیره اسا نی برا بره کړی او د‌ډاډ من ځواب ور ته وایی .

**موسکا**

# دق الباب

دصفحې خاوند ماما خبردار
يې وړاندې کوي

## مرغلري

• هر څوك چې له نورو څخه وغواړي چې د فضلیت تومنه يې وبولي ، دا كار د هغه دنا‌ـ ړو هي ښنسټ ګڼل کیږي .

**سعدي**

• آزاده انسان حق لري چي خوا شیني شي که خپله ورغ يې ديوه ګټور كار له سر ته رسو لو پر ته تيره کړې‌وي.

**کنفو سیوس**

• هڅه ، دبري اوبريا لیتوب اساس او ښنسټ دی .

**اسمایلز**

• په هنرکی هم دژوند پشما‌ـ نته دآزادي او پر مختګــك هدف برو ت دی .

**بتهو فن**

*هنرمندباید دمیني‌اووا قعیت انځور ګروی .

**ما کسیم ګورکي**

• ديوه قوم دادبيا تو تاریخ دهغه قوم دملیت قباله او د خپلوا کی سند دی .

**الکسا ند ر دو ما**

• که په رښتیا پخپل بـری داډ من یاست ، خا مخا بـه بریالی شي .

**شواو تز**

• یو شمیر تل وا يي چي سور ګل اغزی لري ،خو زه خوشحا له يم چي اغز ی‌ګل لري .

**آلفونس کار**

•کمهره ورځ‌لاره بد له‌کړی هیڅکله بهدف ته‌ونه‌رسیږی.

**بالانش**

• د پانګوالوخزانه، دبیوزلو په‌کړ او را منځته شوید ه .

**ویکتور هوګو**

• بری . له کار ، هڅــي‌او مبارزی نه جلا کیږي ..

* * *

• له رښتیااوسپیڅلتیاهیڅ ار ز ښتنا ك زینت نه شته .

**ویلیام شکسپیر**

•لتي هرکا ر سخت ښيي. خوکاراوهڅه‌هرکارآسانه‌کوي.

**فرانکلن**

# دماماخبرد ارله البوم څخه

## په‌واټونوکي تياتر

# مقناطیسي خوب (!)

ما ما خبر دار چي يوه موده له خپل يوه (!) ملګرې شاد‌ـ ولا خان څخه بې خبره و څو ورځي مخکي کور ته ور غی چي له حال او احوال څخه‌يي خبر شي . شا دو لاخان‌خا‌ـ مخا پيژ ني ، هماغه نوميالي څيړو نکی او مختر ع چي‌کله کله يې په متفکره مغزو کې‌نوی فکر ورګر زی او پیچلي‌معما ګانی حل کوي .داخلي شاد‌ـ ولا خان له ماما خبر دار سره له پوښتنې او مخ ښکلو لـو وروسته وویل چي د هپینو‌ـ تیزم یامصنو عي او مقنا طیسی خو بونو په‌باره کي يي اوږدې څیړ نې کړي او په دې هکله يې ډیر کتابو نه لو ستي‌دي، او دادي په بشپړه تو ګـه ځواکمن دي چي يو څوك په دي وسیله به مقنا طیسي‌ښه خوب‌ویده کړي .

شادولا خان دخپلي خوا کمنی د ‌ه‌باب نيم ساعت خبــری وکړي، خو چي نا څاپه ددهاو دماما خبر دار دد واړ وګــډ دوست مراد خان سر له ورایه را ښکار ه شو .

ستړي مشی لا خلاصه نه وه چي شادو لا خان مرادخان ته مخ و ګر زاوه او وی ویل: ــمراد جانه ، زه غواړم چي تاهیپنوتیزم کړم او ویــــده دی کړم !

مراد جان چي هك پك پاتي شوي و . وی ږوښتل :

ـ څنګه غواړی ماهیپنوتیزم کــړی او ویده می کـــړی؟ زما هیڅو نه خو ښیږی‌له شپې مخکي . ویده شم .

ــلازمه نده چي ډیراند ـ یښمن اوسي ، ته دومره‌وکړه چي اوږد پر يو څه او په کوم شی‌کی فکر مه کوه. زه له‌يوه څخه ترديرشو پوري شمیـــر کوم. کله مې چي وويل‌ديرش ته نو بیا هیپنوتیزم شـــو ی يې او به مقنا طیسي خو ب‌به ویده يې او هر څه چي زه درته ووایم سر ته يې رسوې .

مراد جان چي د شا دولا خان په خوی او اخلاقو ښه پوهیده په نا چاري سره يي موا فقه وکړه او په کراره او زدو غز‌ـ يد . شا دولا خان به شمیرلو پیل وکړ : یو ، دوه ، دری ... لس .... شل ... دیرش ! مراد جان هیڅ نه خوځیده .شا‌ـ دولاخان په خو ښي سره ماما خبر دار ته وویل :

ــها ! ما ما جا نه ښـــه وګوره، څو مره آرامه و يــده شو .

او نا څاپه يې وويل :ښه مراد جانه ! ته نو نور په‌درا‌ـ نده خوب ویده يې ، یا الله دی کړ ، ځان يې بری يوه نکر ښي لاس دی پور ته کړه. مراد جان خپل لاس پور تـه کړ ، شا دو لاخان چي له‌خو‌ـ ښي نه پخپلو ځاليو کي نـه ځا ییده . ماما ته وویل :

ــما ما جانه و ګوره ، هر څه چي ور ته وایم . عفه‌تر سره کوي !

دشا دو لاخان خبره لا پای ته نه وه رسید لې چي مراد جان خپلې ستر ګي پرانیستي او پو ښتنه يې وکړه :

ــاوس کو لی شم خپـــل لاس ښکته کرم ؟

ــڅه وايي ؟!!

مراد جان په حو صله‌توب سره وويل : زه غوا ړم چي خپل لاس ښکته کړم .

شادولا خان څه چي ليدل باور يې پر ی نه کاوه ، به عصبانیت سره يې وويل :

ــته ولي ويده نه شو ی؟

ــماچي وويل ،څو چي‌شپه نه‌شي ،زه مې‌نه غواړي ويده شم .

ــنو لاس دې ولي پور تـه کړ ؟

ــتا راته وويل ، لاس دي‌پور ته‌کړه ،ماهم لاس پورته کړ.

ماماخ بر دار و ليد لچي شا دو لا خان له نا كا مي او خجا لت سره مخا مخشوی او وی ویل: راځئ چي يوځل بیایې وآزما یو .

داخلي شا دو لا خان او ماماخبر دار دواړو به شمیر ـ لو پیل وکر به لو مړی ځـل کي شا دو لا خان شمیر وکړ وريسي ماما خبر دار . کلـه چي ماما ستړی شو ، بیا شا‌ـ دولاخان شمیر و کړ . هوا تياره شوی وه چي شادولا‌ـ خان وويل : «يو شپیته زره او يو سلو ښځه ويشت » به دی وخت کی دواړو ولیــدل چی‌مراد جان ویده شوی دی.

... ما ما خبر دار او شا‌ـ دولاخان دهیپنو تیزم آزموینه په ښه تو ګه تر سره کړه. يو ډیر په زړه پوری کــارو، تاسی هم کو لی شي خپلــی هلي ځلي وکړی او دو ستا ن هیپنوتیزم کړی او په مقنـــا ـ طیسی خــوب يي ویـــده کړی البته که کافي وختو لري!

**عطا**

موضوع : له بهرنیو منا بعـو څخه

ماما خبر دار جدی دی

شترلیتس ،لو رچ ته مخ کړ . وروګرزاوه او خبرو ته يې دوام ورکړ :

ــ او داهم هغه رپو ټ دی‌چي سبا ته يې زما تر راتللودمخه هغه‌مرکز ته مخابر ه کـړ ی «شلینبر ګ په سو يـس او سو يس کي دپټو خبرو لړی له سره پيل کړی‌ده.

دی بر نــا دوت په ستــا‌ـ کهولم کي او میوزی په مو‌ـ نترو کس کي خپل كلــك همکا ران ګڼي .

ددا ګمار فر يتا ج له مير مني سره يو ځای په ستا کهولم کي داطلا عاتي ما موريت په سرته رسو لو ګو مار ل شوی يم.هلته فر يتا ج د ګنت برنا‌ـ دوت‌له همکارانو سره يوځای کيږي . هغه ٣٦ کلنه ښځه‌او ژبپو هانده ده او ورو ستــه تر هغه چي شلیـــنبر ګ‌د هغې میړه چي يوادرو ندسړی و، په هټلري ضد فعالیتو نو کي دګډون په جر م بندي‌کړ، دايي دی کار ته رهڅو له او جذب يي کړه .

میولر خپل جاسو س په‌ما‌ـ ښسي اجو لی دی . بور مان له لو یدیځ سره تماسو نــه لري. هغه ماته ویلي دی چي له بی طر فانو یعني له الن دولس سره ډیری ګو چنــی خبری دزا یښ پټی خبری دی تر ټو لو لومړ ی دی‌هیڅکله نه غواړی چي له دغه پټ راز څخه يوه دزه هم کر ملين ته ورسیږی .».

* * *

میو لر کله چي د شتر ليتس رپوټ چي دلو رچ په وسیله یهر ته مخابر ه شو ، سرتر پایه ولوست ،په خو ښي‌سره يې چیغې کړی .

ــهو ګو ! ما شا الله،خپل ماموریت دی ډیر ښه ترسره کړ .

البته د شتر ليتس رپو ټ دځا سوسا نو دهغي ډلي په وسیله چي په هغه پسې و ، میولر ته ور کړ شو .

* * *

سبا سهار دو خته کله‌چي شلینبر ګ او بور مـــان د شتر‌لتیس له رپو ټ څخـــه خبر شول ،له خو ښي څخه په ځالیو کي نه ځا ییـدل، او میولر دهغه ما شو م پشمانته چي د پسر لي په وخت کي دخپل نیکه په غیاب کــــی دانګورو با غ ساتي ، خو ښ او خو شحاله بريښيده .

په رښتیا چي د ګشتا پو داچي هغوی خبری ښندو ی‌او یاپه قو ت سره ور ته دوام ور کوی.

* * *

دبور مان ـ میولر انتظار دارنګه و : که دخبرو په پایله کي دلو یدیځ جبهي لاری د امریکا ییانو په لور پرانیستلي شي ، امریکا يي اردو به پر برلین یر غل و کړي او لـــه هغه‌ورو سته به د سیلاوپشا‌ـ نته‌د تولي ارو پا دو چي په لور روان شي .

هغه وخت به نو ستا لین‌ته د سو لي د پیشنهاد ونو دوړا‌ـ ندی کولو کار حتمي وی .

په پیشنهاد و نو کي دی سره سره نه نیوه . اوهغه‌يي دقمار په يوي پاڼي اړو لي و چي دبور مان او میو لر په وسیله يې خپل ځان له اند‌ـ یښنی څخه وژغوره .

کله چي ديو بل شفر ی رپوټ په ذر یعه شتر لیتس وغوښتل شو ، دمیو لر پسر شونډو يوه ښکلي مو سکـــا وبريښیده اووی ویل : اوهو، څه‌بخښنه !

او اوس برین دی چی‌ستا‌ـ لين دهغه چا په هکله سو چ وکړی چي دلته په بر لين‌کي دهملر مخالف دی ، او لـــه دولس سره دهملر دتړو ن‌په باب له دی دوو تنا کلو پـــه برخه کي پخپله دستا لین په لاس کی دی . ما خپله‌غوښتنه ورته څرګنده کړی ده اوبور‌ـ مان‌هم له ما څخه زيات ،په داسی حال کی چي د روزولت مخالف ځوا کو نه له کر ملين څخه په ډاګه کړ که لري، د امریکا به متحد و ایالتو نو کی‌يي استحکام پیدا کـړ ی دی .

* * *

ورو‌ستي برخه

# دژوندي پاتي کيدو لپاره

له خوښي ډکه څیره ناڅاپي هم‌نه وه . میو لر په ډیر ی هو ښیار ی سره شتر لیتـــس، ترآغیزی لاندی را وستــی و او د هغه پر هر هوډ دمخـــه پو هیده .

دی خلکو د شتر لیتـــس د رپوټونو په څیرلو سره‌خیال کاوه چي ته به وایي دکرملين او سپینی ماڼي تر منځ مــوا ـ جه احتمال وجود لري اوددغه موا جهه په پناه کی به‌میولر روغ رمټ راوو ځي . په هر صورت ،د بورمان ـمیولر د ژو نــــد ی پــا تي کیدو شا نس ان درو سیي اوامر‌ـ یکا تر منځ دپو ځي مخا مخ نه کیدو به صورت کي دسولي په خبرو کي دبور مان‌اومیولر دریځ بی اغیزی نه وی .یعني سندونه هم ځای کړل شي، چي د «یالتا » موا فقه لیـــك په يو زوړ او له پامه لویدلی کاغذ او ښتي دی .

او اوس داسې وخت رار‌ـ سیدلی دی چي ستا لین دی خپل تصمیم و نیسی :

یاباید امریکا ییان بر لین اشغال کړی او یانو ی جرمني دبورما ن‌په رهبري دامریکـــا یرغل دفع کړی او دیـــو ی رښتینی سو لي تړون دی لا‌ـ لاسلیك کړی .

له دی کبله و چي هغـــو شتر لیتس دهغه درسوا کیدا‌او

د «ژوندي پاتي کیدو لپاره» دراتلو نکو فصلو نو «دپسر‌ـ لی او ولس شیبي «دمشهوری کیسی په دویمه بر خه کی زیاتي پیښي پیښیږ ی. لو‌ـ ستو نکی د پیښو په لړ کی‌د شترلتیس برخلیك تر پایــه پــوری تعقیبو لی شـــی .د میولر در بړ و نو او شکنجـــو سره سره، دخپل ژو ندا نه په لاره کی پراخه افقونه ويني او په پای کی دلاتینی امریکا په يوه هیواد کی سر ګردانه ګرزي .

**ی . سیمیانوف**

**دا. آذری ژباړه**

مویریږی ! یوازې په‌بلغاریاکی د سیمه ییزو کارنیوالونو یوه ننداره ده .

# دماماخبردارله‌خورجيني څخه

هارون ، بهلول ته وویل:تاته پ ه‌خلکو کی ډیر نږدی دوست څوك دی ،وی ویل هغه څوك چي زما ګیډه رامړه کړی .

وی ویـل‌زه يي مړو م .

نوزه به دربانده ګـرا ن شم که نه ؟ وی ویل دوستی په پور نه کیږی .

**عبید زا کاني**

پلار : ولی ښوو نځي ته نه ځي ؟

زوی: زه حاضر نه یم چي يوه‌ورځ هم ښوو نځي ته لاړ شم .

پلار : ولی ؟

زوی : ځکه چي زموږښو‌ـ ونکي يوه ور ځ وویل : دزی ار ځلور اوه کیږی ، خوپرون يي وویل، چي دوه او پنځــه اووه‌کیږی .

* * *

لومړی ، دافریقا په و چه کي يو ښار دی چي دتیرو سلو کلونو په موده کي د ښـــار نفوس ديو تن په شمير هم بداوړن ندی مونډلی ؟

دویم : دا خبره هڅود مسلو وړنده .

لومړی : ځکه ، هر وخت چي په دی ښار کي يو ماشو م‌زوی وزیږ یږی دد غه ښار یو تن له ښار څخه ځي .

* * *

يوی ګید ړی ته يې وویل آیا کو لی شی چي دغه سل دیناره واخلی او دکلي سپيو ته يو پیغام ورسو ی ؟

وی ویل : والله که څه هم پیسی زیاتی دی ، خو په دی معامله کي د ځان خطر دی!

دجا مي له بهار ستان څخه

ماما خبر دار خاندي

بی له شرحې

دتحریر هیأت تر نظر لاندی
مسوول مدیر : صدیق کاوون

تیلفو نـو نــه
مسوول مدیر : ۶۲۴۷۴ سوچبورد : ۶۱۰۴۲ ۶۱۰۴۴ ۶۱۰۴۳ دلیکونو څانګه: ۶۱۷۰۳ اداری : ۶۱۹۴۱
اطلاعات : ۶۱۰۴۵ ۶۱۱۱۸ ریش اوشکایتونه : ۶۲۸۵۹
پستي صندوق : ۷۸۰ ددولتي مطبعي دویب آفسیت چاپ
بانکي حساب : ۱۰۱۸ پر۹ د یوی ګنبی بیه «۲» افغانۍ